

# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی — دا عـزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمـان دی
دا وطن د ټولو کور دی — د بـلوڅـو د ازبکـو
د پښتـون او هـزاره وو — د ترکمنـو د تاجکـو
ورسره عرب، گوجر دي — پامیریـان، نورستانیـان
براهوي دي، قزلباش دي — هـم ایمـاق، هم پشه یان
دا هیــواد به تل ځلیږي — لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیـا به — لکـه زړه وي جـاویـدان
نوم د حق مـو دی رهبـر — وایـو الله اکبر وایو الله اکبر

بسم الله الرحمن الرحیم




د پوهنې وزارت

# پښتو

## اووم ټولګی

(د دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هـ.ش.



# د کتاب ځانګړتیاوې


**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** اووم

**د متن ژبه:** پښتو (د دري ژبو لپاره)

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزير پيغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای جَلَّ جَلَالُهُ شکر په ځای کوو، چې موږ ته يې ژوند رابښلی، او د لوست او ليک له نعمت څخه يې برخمن کړي يو، او د الله تعالی پر وروستي پيغمبر محمد مصطفی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې الهي لومړنی پيغام ورته (لوستل) و، درود وايو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمريز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونيز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدينو شوراګانې د هېواد د پوهنيز نظام شپږګوني بنسټيز عناصر بلل کيږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختيا او پرمختيا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونيز نظام کې د ودې او پراختيا په لور بنسټيزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونيز نصاب اصلاح او پراختيا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړيتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځيو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونيزو تأسيساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کيفيت او توزيع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور يو، چې د باکيفيته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنيو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونيز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مديرانو څخه په درناوي هيله کوم، چې د هېواد بچيانو ته دې د درسي کتابونو په تدريس، او د محتوا په لېږدولو کې، هيڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د يوه فعال او په ديني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زيار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤوليت په درک سره، په دې نيت لوست پيل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د يوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځيرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدريس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونيز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په ليکلو او چمتو کولو کې يې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای جَلَّ جَلَالُهُ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بريا غواړم.

د معياري او پرمختللي ښوونيز نظام او د داسې ودان افغانستان په هيله چې وګړي يې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزير

دکتور محمد ميرويس بلخي



# فهرست



لومړی لوست

# د خدای ﷻ ستاینه



هر نېک کار د خدای ﷻ په پاک نامه پیلېږي. هر کار چې د خدای ﷻ په نامه پیل شي، پای یې نېکمرغه وي. له خدای ﷻ سره د مینې په پیدا کېدو د مسلمان په زړه کې د توحید روحیه رامنځته او پیاوړې کېږي. موږ د خدای ﷻ بنده ګان یو. په هر کار کې له خدای ﷻ څخه مرسته غواړو. دعا د عبادت ماغزه دي. باید له هر عبادت وروسته خدای ﷻ ته دعا وکړو او له هغه ﷻ څخه خیر او برکت وغواړو.

- موږ چا پیدا کړي یو؟
- ځمکه، اسمان او کاینات د چا پیدا ینښت دي؟

مور ټول لوی خدای ﷻ پیدا کړي یو. خدای ﷻ د ټولو مخلوقاتو پالونکی دی. خدای ﷻ ټولو مخلوقاتو ته روزي رسوي. که هغوی په ځمکې کې وي، تر ځمکې لاندې وي، په هوا کې وي، که په سیندونو کې وي او که په سمندرونو کې، ټول مخلوقات د خدای ﷻ ستاینه کوي او پر نعمتونو یې شکرونه باسي. مور هر نیک کار د خدای ﷻ په پاک نامه پیلوو. تر خوړلو دمخه بسم الله ... وایو. هیڅ کار د خدای ﷻ له ارادې پرته نه کېږي. د کار له پیل څخه مخکې انشاء الله (که خدای وغواړي) ویل ښه دي. د خدای ﷻ عبادت د انسان مکلفیت دی. په عبادت د سړي روح او بدن آرامېږي. له عبادت څخه وروسته دعا کوو. په دعا کې خپلې ټولې اړتیاوې له خدایه غواړو.

د متن لنډیز:

ځمکه او آسمان د خدای ﷻ خلقت دی. انسانان، الوتونکي، څاروي او نور ټول موجودات خدای ﷻ پیدا کړي دي. خدای ﷻ ډېر رحیم ذات دی، د خپلو بنده‌گانو گناهونه ببښي، خو شرط یې دادی چې انسان له خپل خدای ﷻ څخه ببښنه او مغفرت وغواړي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي:

- ستاسې په فکر د خدای ﷻ ستاینه ولې د کتاب په پیل کې راغلې ده؟
- حمد څه ته وايي او موږ ولې د خدای تعالی ستاینه کوو؟
- د حمد په ویلو زموږ په کار کې څه آساني رځي؟

۲ــ زده کوونکي دې په متن کې:

- ورته او مشابه کلمې ولټوي او په جلا جلا کرښو کې دې ولیکي.
- (ستاینه، رب، پیل، پای، نېکمرغه، پیاوړی، پالنې، توحید، نړۍ او لارښوونه)

کلمې دې معنا کړي او په جملو کې دې وکاروي.

۳ــ زده کوونکي دې د لاندې جملو معنا ولیکي:

((خدای ﷻ ډېر رحیم او مهربان دی. د خپلو پښېمانو بنده ګانو ګناهونه ښښي.

٤ــ زده کوونکي دې:

- پورته حمد په لوړ آواز ولولي.
- په څو جملو کې دې د خدای ﷻ په هکله د خپل احساس څرګندونه وکړي.
- د پورته حمد په څېر دې په ساده ټکو کې د خدای ﷻ ستاینه وکړي.

٥- زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او د هرې ډلې یو یو غړی دې، د لاندې بېلګې په څېر د بلې ډلې له غړي پوښتنې وکړي:

- ته چا پیدا کړی يې؟
- زه خدای ﷻ پیدا کړی یم.

- ته کله د خدای ﷻ شکر کوې؟
- د خوراک او څښاک پر وخت د خدای ﷻ شکر کوم.
- ځمکه او آسمانونه، غرونه او سیندونه چا پیدا کړي دي؟
- ځمکه، آسمانونه، غرونه او سیندونه خدای ﷻ پیدا کړي دي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خدای ﷻ د ستاینې په هکله یو څو ساده جملې ولیکي او په بل لوست کې دې په ټولګي کې د نورو تر مخه ولولي.



# لومړی سلام، پسې کلام



دویم لوست

# زموږ ګران پیغمبر ﷺ

تاسو د ګران پیغمبر ﷺ د مبارک نامه په اوریدو څه وایئ؟

حضرت محمد ﷺ زموږ ګران پیغمبر دی. هغه په مکه مکرمه کې زیږیدلی دی. په ٤٠ کلنۍ کې پیغمبر شوی دی. قرآن کریم پر محمد ﷺ نازل شوی دی. د اسلام پیغمبر ډېر نیک خوی او غوره اخلاق درلودل. د هغه اخلاق او ژوند د مسلمانانو لپاره نمونه او مثال دی.

ښه اخلاق مسلمانان خپل پیغمبر ته نژدې کوي.

- پر کښرانو باندې د ګران پیغمبر د شفقت او مهربانۍ په هکله څه پوهیږئ؟
- د حضرت پیغمبر ﷺ وینا او کړو ته څه وایې؟

حضرت محمد ﷺ د مسلمانانو پیغمبر دی. هغه خدای ﷻ ته ډېر ګران او منلی دی. ګران پیغمبر انسانانو ته د خدای لمانځنې او ښو چارو لارښوونه کړې. انسانانو ته یې د خدای ﷻ په امر سمه او کږه لاره وروپېژندلې ده. انسانان یې د یوه خدای ﷻ عبادت او بندګۍ ته بللي دي. حضرت محمد ﷺ د اسلام په پلي کېدو کې ډېر کړاوونه ګاللي دي. د دنیا او اخرت خیر او نېکمرغي په اسلام کې پرته ده. زموږ ګران پیغمبر ﷺ د ښو او غوره اخلاقو یوه نمونه وه. هغه فرمايلي وو: ((زه ددې لپاره رالېږل شوی یم چې نېک او ښه اخلاق بشپړ کړم.))

د متن لنډیز:

په پورته متن کې د خدای ﷻ د ستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ یادونه او ستاینه شوې ده. د هغه کمال او حکمتونه هومره ډېر دي چې موږ یې شمېرلای نه شو. د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ په ټولو ښېګڼو او نېکو اخلاقو ستایل شوی دی او موږ یې تل په مینه او درنښت یادوو. د خدای ﷻ ګران او منلی پیغمبر د اخلاقو یوه نمونه وه.





## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې د لاندې نویو کلمو معنا د کتاب په پای کې ولټوي، ځان دې پرې وپوهوي او په جملو کې دې راوړي:

اوربېده (اوربېدل)، وروسته، زېرېدلی، ګومارل، غوره، درلودل، وینا، کره، ستایلی، درنښت، مینه.

■ د لاندې جملو معنا په ساده ټکو کې ولیکئ:

((ګران پیغمبر انسانانو ته د خدای ﷻ لمانځنې او نېکو چارو لارښوونه کړې. انسانانو ته یې د خدای ﷻ په امر سمه او کره لاره ښودلې ده. انسانان یې د یوه خدای ﷻ عبادت او بنده ګۍ ته رابللي دي.))

■ زده کوونکي دې په دریو ډلو کې د ګران پیغمبر ﷺ په اړه یوه، یوه ساده جمله ولیکي او د هغوی استازي دې نورو ته واوروي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي:

■ د یوې ډلې غړي دې په وار سره پورته متن په لوړ آواز ولولي.

■ د دوېمې ډلې غړي دې په نوبت د پورته متن مفهوم په خپلو خبرو کې څرګند کړي.

۳ـ زده کوونکي دې:

■ په پورته متن کې عربي، دري او پښتو کلمې بېلې کړي.

■ په متن کې ورته اومشابه کلمې ولټوي.

■ د متن له مخې د پیغمبر ﷺ د اخلاقو په اړه خبرې وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي:

■ د لومړۍ ډلې غړي دې پوښتنې وکړي او د دویمې ډلې غړي دې په وار سره ځواب ورکړي. بېلګه وګورئ:

یو زده کوونکی: د مسلمانانو ګران پیغمبر ﷺ څه نومېږي؟

بل زده کوونکی: زموږ ګران پیغمبر حضرت محمد مصطفی ﷺ نومېږي.

٥ ـ د لاندې جملوتش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړئ:

■ حضرت محمد ﷺ د مسلمانانو............... پیغمبر دی.

■ هغه خدای ﷻ ته ډېر ګران او ..................... و.

■ ګران پیغمبر انسانانو ته د ........ او .......... چارو لارښوونه کړې.

■ انسانانو ته یې د خدای ﷻ په امر ...... او ....... لاره ورښوولې ده.

■ حضرت محمد ﷺ د اسلام په پلي کېدو کې ډېر ............. ګاللي دي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د حضرت محمد ﷺ د نیکو اخلاقو په اړه د خپل مور او پلار په مرسته په خپلو کتابچو کې څو لنډې، لنډې جملې ولیکي.

**حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:**

څوک چې پر کشرانو زړه سوی او د لویانو درناوی نه کوي، زما په ډله کې نه دی.



دريم لوست

# سوله او ژوند



- سوله څه ته وايي؟

جګړه تباهي راولي. انسانان وژني، کورونه يې ورانوي او له لوږې او ناروغيو سره يې مخامخ کوي. سوله ړڼا ده. د ژوند نېکمرغي ده. په سوله کې خلك ښه ژوند کوي. هلكان او نجونې ښوونځيو ته ځي. هرڅوك په خپلو کارونو بوخت وي او بې له ډاره له يوه ځايه بل ځای ته ځي. هر انسان، او ځناور، سولې ته اړتيا لري.

- د سولې لپاره څه کول پکار دي؟
- که سوله نه وي، ژوند به څنګه وي؟

سوله او جګړه دوې کلمې دي. یو د بل ضد دي. سوله ژوند ته وايي او جګړه ورانۍ ته. سوله رڼا ده او جګړه تیاره. په رڼا کې انسان هر څه ویني. تیاره د انسان سترګې پټوي. په جګړه کې ښوونځي تړل کیږي. هلکان او نجونې زده کړه نشي کولای. روغتونونه ورانیږي او ډاکټران د جګړې له ډاره تښتي. په سوله کې ښوونځي پرانیستي وي. هلکان او نجونې ټول زده کړه کوي. هرڅوک د خپل ژوند د ښه کېدو لپاره کار کوي. هېواد ودانیږي، صنعت پراخیږي او هېواد پرمختګ کوي. د هېواد په پرمختګ د هر چا ژوند ښه کیږي.

سوله د یوې ټولنې، یو ولس او یو هېواد د نېکمرغۍ نښه ده. کوم ولسونه او قومونه چې سوله خوښوي د هغوی راتلونکې روښانه اونېکمرغه وي. ژوند یې په خوښۍاو خوشحالۍتیریږي. ماشومان یې خپلې زده کړې کوي، زاړه او ځوانان یې د خپلو خلکو خدمت کوي. خپل هېواد ودانوي او له نورو ولسونو او هېوادونو سره ځانونه برابروي.

د متن لنډیز:
سوله د ژوند نوم دی. بې له سولې ژوند معنا نه لري. هېواد په سوله کې پرمختګ کوي. سوله خوښي ده. سوله روغتیا ده. په سولې کې ژوند دی، خوشحالي ده. موږ سولې ته تږي یو. موږ سوله غواړو. جګړه نه غواړو. جګړه تباهي راولي. جګړه ماشومان وژني. جګړه د بدمرغۍ نوم دی. تل دې سوله او تل دې ورورولي وي! هرڅوک د ښه ژوند او عزت خاوند کیږي. کار روزګار پیدا کوي. په سوله کې د هر چا حقونه معلوم وي او یو د بل حق نه تر پښو لاندې کوي. سوله یوه بشري اړتیا ده. موږ ټول باید د سولې د ټینګېدو لپاره هڅه وکړو.



## څرګندونه

تر ښښو لاندې کول:

یو شی تر ښښو لاندې کول. دلته پر یو کار باندې سترګو پټولو ته وايي. لکه، په جګړه کې بشري حقونه تر ښپو لاندې کېږي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې پر دريو ډلو وويشل شي.

الف: له مخه ټاکل شوي دوه دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د لاندې بېلګې له مخې دې یو له بل سره د سولې پر موضوع خبرې اترې وکړي:

- زما سوله خوښېږي.
- زما هم خوښېږي. جګړه تباهي راولي.
- ...

ب: پنځه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د سولې په اړه دې په ساده ډول یوه دقیقه خبرې وکړي.

ج: شل تنه زده کوونکي دې په دوو ډلو کې په وار سره دا لاندې کلمې یو له بله وپوښتي او په لنډو جملو کې دې راوړي.

لوړه، ناروغي، مخامخ، رڼا، نېکمرغي، بوخت، ډار، اړتیا، ودان، روغتون، پرمختګ.

۲ـ د لاندې جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو په پنسل ډک کړئ:

- ............... د ژوند نوم دی.
- بې له سولې ............... معنا نه لري.
- هېواد په سوله کې ............... کوي.
- هرڅوک د کار او ............... خاوندان کېږي.
- سوله یوه ............... اړتیا ده.
- مورږ باید د سولې لپاره ............... او هڅه وکړو.

۳ـ زده کوونکي دې په څلورو ډلو ووېشل شي. دوه ډلې دې په جلا ډول د سولې پر ګټو او دوه نورې دې د جګړې پر زیانونو خبرې وکړي. خپلې خبرې دې په څو لنډو جملو کې ولیکي او بیا دې د هرې ډلې استازی په وار سره په ټولګي کې ولولي.




## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې د سولې ګټې او د جګړې زیانونه سره پرتله کړي او په راتلونکي لوست کې دې خپله لیکنه ټولګي ته راوړي.

**لومړنۍ دقت د وروستۍ پښېمانۍ مخه نیسي.**
**سقراط**





# د (ی) ډولونه

ی ې
ي
ۍ ئ

هره ژبه جلا غږونه او توري لري. په پښتو کې يو شمېر غږونه دي چې په بېلا بېلو (ی) ګانو ښودل کېږي. (ی ګانې) اصلاً توري نه دي، بلکې غږونه دي. که دا غږونه د چا زده نه وي، نو د پښتو متن سم لوستلای او ليکلای نشي.

■ که مو د (ی) بېلابېل ډولونه زده نه وي، آيا يو متن سم لوستلای يا ليکلای شو؟

ټولې ژبې ځانګړې جوړښت لري. زموږ د هېواد ژبې هم همداسې دي. دري خپل جوړښت لري او پښتو خپل. په پښتو ژبه کې څو غږونه دي چې په دري ژبه کې نشته. همدا راز د غږونو لپاره یو شمېر لیکنی نښې شته چې توري ورته وایي. د یو شمېر غږونو لپاره توري نشته، له دې امله په لوستلو کې ستونزې رامنځته کېږي. په پښتو ژبه کې پنځه غږونه دي، چې په کلمو کې د معنا د تغییر سبب کېږي. له دې جملې څخه یو یې هم (ی) ګانې دي. (ی) ګانې زیاتره د کلمو په منځ او پای کې راځي او په بېلا بېلو بڼو لیکل کېږي. دلته یې له بېلګو سره ګورو:

**۱ ـ نرمه (ی)**: هیڅ ټکي نه لري او یوازې د نارینه نومونو لپاره کارول کېږي، لکه: سړی، منګی، لرګی، زلمی، توریالی.

بېلګې یې په لاندې جملو کې وګورئ:

- یو سړی راروان او لرګی ورسره دی.
- منګی یې له سره ولوید.
- زلمی او توریالی نن سهار لاړل.

**۲ ـ څرګنده (ي)**: د دې (ي) لاندې دوه ټکي څنګ پر څنګ ایښودل کېږي. زیاتره د جمع او د نسبتي نومونو په پای کې راځي، لکه: سړي، منګي، لرګي، دوبي، موچي، پردي، خپلوي.

بېلګې یې په لاندې جملو کې وګورئ :

ـ سلیم او وزیر کاکا ډېر ښه سړي دي.
ـ کله کله پردي هم په کار راځي.
ـ خپلوي خوږه وي.
ـ موچي ته مې بوټان ورکړل.
ـ دوبي ته مې کالي ورکړل.

### ۳_ اوږده (ې): هغې (ې) ته وايي چې لاندې ترې دوه سر پر سر ټکي راغلي وي. دا (ې) زیاتره د مؤنثو نومونو په پای کې راځي، لکه: ادې، شيدې، ناوې، مستې.

ښلګې يې په لاندې جملو کې وګورئ:

ادې شيدې تومنه کوي.

د کاکا ناوې مستې جوړوي.

زرغونې ادې ته غږ کړ.

### ۴_ د تانيث (ۍ): دې (ۍ) ته زورکيواله (ۍ) وايي چې د ښځينه نومونو په پای کې راځي. لکه: ډوډۍ، خولۍ، څوکۍ، سپوږمۍ، تورپېکۍ او نور.

ښلګې يې په لاندې جملو کې وګورئ:

_ ګلالۍ پر څوکۍ ناسته ده.

_ تورپېکۍ د احمد خولۍ پريمينځي.

_ هوسۍ ډوډۍ خوري.

### ۵_ مخاطبه (ئ): دا (ئ) په وينا کې د زورکيوالې په څېر ويل کېږي او په امريه فعلونو کې راځي، لکه: خورئ، ځئ، کښينئ، پاڅېږئ، ودرېږئ.

يا دا لاندې جملې :

هلکانو ډوډۍ وخورئ.

ځئ لاړ شئ.

کښېنئ او درس ولولئ.

د متن لنډيز:

(ی) ګاني د پښتو ژبې غږونه دي. پنځه بېلا بېل ډولونه لري. د کلمو په منځ او پای کې راځي. پښتو (ی) ګاني دي چې هره يوه يې د کلمو معنا تغييروي. هر څوک چې د پښتو متنونه ليکي يا يې لولي، ددې (ی) ګانو او د هغو د غږونو زده کړه ورته زياته ضروري ده.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې پر پنځو ډلو ووېشل شي.

الف: لومړۍ ډله دې په لاندې جملو کې د (ی) بېلا بېلې بڼې وګوري او اړوند ټکي دې ورلاندې کېږدي:

- تاسې په کوم ټولګي کی یاست؟
- زموږ کور ډېر لوی دی.
- د احمد خپلی شکېدلې ده.
- توريالی ښوونځي ته ځي.
- د زرګي ګېډه خوږېږي.

ب: دويمه ډله دې دا لاندې جملې بشپړې کړي:

- خپلوي ................ وي.
- دوبي ته مې ................ راوړل.
- ادې ...................... تومنه کوي.
- هوسی .................. خوري.
- هلکانو .................. وخورځ.

ج: درېمه ډله دې په لاندې کلمو کې نارينه (ی) پر ښځينه (ي) واړوي او بيا دې تلفظ او د معنا توپير په ګوته کړي:

سړی، لرګی،        منګی، توریالی، زړګی
د : څلورمه ډله دې په لاندې کلمو کې د (ی) ګانو نومونه ولیکي:
خولی، منګی، لرګي، لیکۍ، ځې
هـ: پنځمه ډله دې پنځه ښځینه نومونه ولیکي چې په پای کې یې زورکیواله (ۍ) راغلې وي.

۲ـ زده کوونکي دې پر دوو ډلو ووېشل شي او د دواړو ډلو یو، یو غړی دې په خپلو منځونو کې د لاندې بېلګې په څېر خبرې اترې وکړي:

- زړګیه، چېرته ځې؟
- کور ته ځم. ته چېرته ځې، زلمیه؟

۳ـ د زده کوونکو له منځ څخه دې دوه اته کسیزه ډلې جوړې شي او د یوې ډلې غړي دې د بلې ډلې له غړو څخه د لاندې کلمو د معنا پوښتنه وکړي او که وخت و، په جملو کې دې وکاروي:
غړونه، توري، څپر، توپیر، ځانګړی، جوړښت، لیکنۍ، ستونزه، بېلګه، نارینه، ښځینه، خپلوي، خوږه، تومنه.
٤ـ زده کوونکي دې لاندې متن ولولي او خالي ځایونه دې په مناسبو کلمو سره ډک کړي:
زما ... احمد دی. د کابل په اندرابیو کې ... یم. عمر مې ... کلونو ته رسیږي. د غازي لیسې د اووم ... زده کوونکی یم. پلار مې .... نومیږي. په کابل ښاروالی کې ... دی.
زموږ ... په ژمي کې رخصت وي. د کابل ټول ښوونځي په ... کې رخصت وي. زه په .... کې کوښښ کوم. ښوونځي ته له تګ دمخه لوست ... .

۵ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او دا لاندې محاوره دې تکرار کړي. ټول زده کوونکي دې هغه یاده کړي:

لومړی: وراره سترې مه شې!

دویم: کاکا په خیر اوسې، ته سترې مه شې!

لومړی: وراره چېرته روان یې؟

دویم: بر کلي ته ځم.

لومړی: په بر کلي کې څه کوې؟

دویم: هلته له ګلاب سره درس لولم. سبا مو د بیولوژي آزموینه ده.

لومړی: آزموینه مو پیل شوې ده؟

دویم: هو، کاکا. درې ورځې کیږي، چې پیل شوې ده.

لومړی: دا کومه آزموینه ده.

دویم: څلور نیم میاشتنۍ ده.

لومړی: څو ورځې دوام کوي؟

دویم: لس ورځې. بیا پنځلس ورځې رخصتیږو.

لومړی: ډېر ښه، رخصتي چېرته تېروې؟

دویم: چېرته به لاړ شم کاکا کور کې کارونه لرم. زړه مې دی چې هغه سرته ورسوم.

لومړی: ځه، خدای ﷻ دې مل شه!

دویم: په خیر اوسې کاکا، د خدای په امان. په مخه دې ښه!

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د مور او پلار د حقونو په اړه یو څو کرښې ولیکي او بیا دې په متن کې پورته ټولې نومول شوې (ی) ګانې په نښه کړي او په بله ورځ دې په ټولګي کې د نورو ترمخه ولولي.



پنځم لوست

# غوره ويناوې

مور، ټول کله ناکله په خپلو خبرو کې د لويانو او حکيمانو د خولې خبرې راوړو. دا کار ددې لپاره کوو چې خبرې موخلک ومني، يا پرې خپله موخه او هدف ښه بيان کړای شو. دې خبرو ته غوره وېناوې وايي چې زياتره د حضرت پيغمبرﷺ حديثونه او يا د نورو لويانو او پوهانو خبرې وي.

- غوره وېناوې څه ته وايي؟
- مور ولې په خپلو خبرو کې غوره وېناوې کاروو؟

غوره وېناوې د حضرت پیغمبرﷺ حدیث او د لویانو اوپوهانو خبرو ته وایي. هغه د کاڼي د کرښو په څېر وي. کله چې په یوه وینا کې راوړل شي، نو خبرې ته قوت ورکوي. پخوانیو پوهانو د خپل ژوند د تجربو او پوهې له مخې موږ ته یو شمېر وېناوې راپرېښې دي. موږ له دې وېناوو څخه په ژوند کې کار اخلو. متلونه د غوره وېناوو څرګنده بېلګه ده. وګورئ، که څوک چاته د درواغو زیانونه په ګوته کوي، نو په خبرو کې ورته وایي: کوږ بار تر منزله نه رسیږي یا د درواغو مزل لنډ دی. متلونه لنډې، لنډې جملې دي، خو ډېره پراخه معنا پکې ځای شوې وي.

لاندې څو غوره وېناوې د بېلګې په توګه ولولئ:

- امانت د رزق موجب دی او خیانت د فقر. (حدیث شریف)
- خدایﷻ آزادي هغه چاته ورکوي چې په لټه کې یې وي. (جین وبستر)
- په هر ځای کې چې یاست باید په یوه کار بوخت واوسې. (هانري فوره)
- د دندې سرته رسول وېښ وجدان، پوه او آګاه زړه او باطني مینه غواړي. (افلاطون)
- مه کوه په چا چې وبه شي په تا.
- څه چې کرې هغه به رېبې.
- د وچو له کبله لانده هم سوځي.

د متن لنډیز:

پوهانو، لویانو او هوښیارانو د ژوند په بهیر کې ډېرې تجربې او پوهې لاس ته راوړې دي. هغوی داګټورې خبرې د تجربو له مخې کړې دي او پر هغو یې پوره ډاډ او باور درلود. څرګنده ده چې دا راز خبرې د هرچا لپاره ګټورې او سودمنې دي. د انسانانو د ژوند ترټولو غوره او ګټور وخت همدا د تجربو تر لاسه کول دي چې د نورو لپاره د سوکالۍ او هوسایۍ لارې چارې برابروي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې په څو ډلو وويشل شي. هرې ډلې ته دې دنده ورکړ شي چې درې، درې متلونه يا د لويانو درې، درې ويناوې وليکي او د ډلې استازي دې د ټولګي مخې ته ولولي.

۲ــ زده کوونکي دې لاندې متلونه ولولي او څو تنه دې په خپله خوښه د هغوی د مفهوم په اړه په ټولګي کې لنډې خبرې وکړي.

- په يو ګل نه پسرلی کېږي.
- له يوه لاسه ټک نه خېژي.
- چې ويې غواړې په خوله، نو ويه يې خورې په څه؟
- که شپه تياره ده، منې په شمار دي.
- ورورې به کوو، حساب ترمنځه.

۳ــ د مخکيني ويش له مخې دې دوه، دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راشي او د لاندې بېلګې په څېر دې په خپلو کې خبرې وکړي. نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونيسي:

جميل: تاسو چېرې اوسئ؟
زرغون: زه په جبل السراج کې اوسم. ته چېرې اوسې؟
جميل: زما کور په ارغنداب کې و، خو اوس جبل السراج ته راغلی دی.

٤ــ په متن کې د لاندې راغلو نوو کلمو معنا وليکئ:
د کانې کرښې، وينا، څرګند، کوږ، پراخه، ګټور، ډاډ، سوکالي، هوسايي، لټه، بوخت، دنده، مينه، رېبل، وچ، لانده.

۵ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو خالي ځایونه په خپلو کتابچو کې په مناسبو کلمو ډک کړي:

- غوره ویناوې د کاڼو د ............ په څېر وي.
- متلونه د ............وېناوو څرګنده بېلګه ده.
- ............بار تر منزله نه رسیږي.
- د دروا‌غو مزل ............ دی.
- امانت د رزق ............ دی.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپلو لويانو په مرسته يو څو غوره وېناوې او درې درې متلونه وليکي او په بل لوست کې دې هغه نورو زده کوونکو ته ووايي.

د میرویس نیکه وینا:

((عقل او حکمت یوازې په ناز او نعمت کې نه دی او نه یوازې د نعمت د خاوندانو په مغزو کې ځای لري. زموږ په غرو کې هم عاقلان او حکیمان شته.))



شپږم لوست

# نېکمرغه کورنۍ

■ کورنۍ څه ته وايي؟

■ ستاسو کورنۍ څو تنه دي؟

کورنۍ له مور، پلار او اولاد څخه جوړه شوې وي. مور، پلار او اولادونه هر يو ځانته بېل، بېل کارونه لري. په يو شمېر کورنيو کې مور د کور په کارونو بوخته وي، په داسې حال کې چې په يو شمېر نورو کې د پلار په څېر له کور څخه بهر کار کوي. زامن او لوڼې ښوونځي ته ځي او زده کړه کوي.

■ که د يوې کورنۍ د غړو شمېر زيات وي، ژوند به يې څنګه وي؟

■ ستاسو په فکر لويه کورنۍ ښه ده که کوچنۍ؟

زمور په ټولنه کې زیاتره میندې د کور دننه کار کوي؛ کور پاکوي؛ جامې مینځي؛ پخلی کوي او ماشومان روزي. د کور دننه د زامنو او لوڼو روزل د مور پر غاړه وي. په یو شمېر ښاري کورنیو کې مېرمنې له کور څخه بهر کار کوي. په یو شمېر کلیوالي کورنیو کې ښځې د نارینه په څېر په کروندو کې کار کوي. پلار له کوره بهر کار کوي او د کور لپاره د ژوند وسایل چمتو کوي. زامن او لوڼې ښوونځي ته ځي او زده کړه کوي. په یوې کورنۍ کې د کورنۍ ټول غړي یو له بل سره د کارونو په سرته رسولو کې مرسته او همکاري کوي. کورنۍ د ټولنې یوه کوچنۍ بېلګه ده. مرسته او تعاون له همدې ځایه پیلیږي.که د یوې کورنۍ د غړو شمېر زیات وي، مور یې روزنې ته په سم ډول نه شي رسېدلای. ځکه هغه د ماشومانو له روزلو پرته د کور دننه نور کار هم کوي. همدا راز ماشومان له روزلو پرته خوړو، جامو او ځای ته هم اړتیا لري. بدني روزنه هم غواړي، روغ او رنځور لري. که د کورنۍ اقتصادي وضع ښه نه وي، نو د کورنۍ ټول غړي له ستونزو سره مخامخ کیږي. که چېرته د یوې کورنۍ د غړیو شمېر لږ وي، مور او پلار یې د ماشومانو سالمې روزنې، خوړو، جامو، روغ، رنځور او نورو ورځنیو اړتیاوو ته ځان رسولای شي او په پای کې دا کورنۍ سالمه، خوشحاله او نېکمرغه کیږي. د کورنۍ نېکمرغي او بدمرغي دواړه د مور او پلار په پوهې او زده کړې پورې اړه لري.

**د متن لنډیز:**

ښه او نېکمرغه کورنۍ هغه وي چې د ماشومانو شمېر یې لږ وي. هرڅومره چې د مور او پلار د پوهې کچه لوړه وي، په هماغه اندازه کورنۍ نېکمرغه وي. د کورنۍ نېکمرغي دهغې د شمېر په لږوالي او د پوهې په اندازه کې ده، نه د پېسو او شتو په لرلو. خپل کلي او ګاونډ ته وګورئ، کومه کورنۍ چې ماشومان یې زیات وي، ژوند یې هم تریخ وي او که د ماشومانو شمېر یې لږ وي او پوهه او زده کړه ولري، ژوند یې هم خوږ او نېکمرغه وي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. د لومړۍ ډلې هر یو غړی دې په وار د بلې ډلې له غړي څخه پوښتنه وکړي او د هغه ځواب دې واوري. لاندې بېلګه وګورئ:

- ستاسو په کورنۍ کې څو تنه دي؟
- موږ په کورنۍ کې شپږ تنه یو: پلار، مور، درې وروڼه او یوه خور.
- ته وروڼه لرې؟ مشر ورور دې څه نومیږي؟
- زه دوه وروڼه لرم. مشر ورور مې زړګی نومیږي.

۲ـ د زده کوونکو له ډلې څخه دې لس تنه زده کوونکي په وار سره یو، یو له بلې ډلې څخه د لاندې نوو کلمو د معناو پوښتنه وکړي. د دویمې ډلې غړي دې په وار کلمې معنا او په جملو کې وکاروي.

کورنۍ، دننه، بهر، لوڼې (لور – لورګانې) غړي، ټولنه، پرېمنځل، پخلی، چمتو، خواره، جامې، اړتیا، رنځور، ستونزه، نېکمرغه، بدمرغه، کڅه، شته.

۳ـ څو تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې کورنۍ په هکله دې خبرې وکړي. (کورنۍ یې څو تنه ده. هر غړی یې څه کار کوي؟ په کوم ځای کې اوسېږي؟)

٤ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو خالي ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړي:

- د ښې او نېکمرغه کورنۍ د ماشومانو شمېر...... وي.
- ستا ........... څو تنه غړي لري؟
- مور د کور ......... کار کوي.

- مور ...... پرېمنځي؛ ...... کوي او ...... روزي.
- پلار .......... کار کوي.
- زامن او لوڼې .......... ته ځي.

٥_ لاندې جملې سمې کړئ:

- ورور زما احمد نومېږي.
- مورږ وروڼه يو شلور.
- ته يې خوك؟
- ته اوسيږې چېرې؟
- زه وايم لوست.

## کورنۍ دنده

کورنۍ دنده:

هر زده کوونکی دې د خپلې کورنۍ په هکله معلومات وليکي او بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ټولګيوالو ته واوروي.

## پوه کمال غواړي او ناپوه مال



اووم لوست

# خپلواکي

- خپلواکي څه ته وايي؟

انسان آزاد پيدا شوی دی. خپلواکي د انسان طبيعي حق دی. مريیتوب او غلامي انساني ژوند نه دی. د بل تر لاس لاندې ژوند زندان ته ورته دی. آزادي پاچهي ده.آزاد ولس د خپل واک خاوند وي. پرمختګ ته يې لار خلاصه وي. که زيار وباسي، تعليم وکړي، يو بل ته د ورورۍ لاسونه ورکړي، ډېر ژر نېکمرغه کيږي. اسارت بدمرغي ده. د بدمرغه انسان ژوند تريخ وي. آرام او سوکاله ژوند ته نشي رسېدای.

- خپلواک ژوند څه خوند لري؟
- د خپلواک او ناخپلواک ژوند توپير څه دی؟

په لاندې شعر کې شاعر د خپلواکۍ تر سرلیک لاندې شعر لیکلی دی. موږ او تاسو یې یوځای لولو او خوند ترې اخلو.

موټې خاوره د وطـــــن به پرې ورنه کړم
که په سر د ځمکې هر وطـــــن ختن شي
د اوبو پر ځــــــای د زړه وینې به ورکړم
که محتاجه طـــــــراوت ته دا چمن شي
خپله خاوره به په خپلــــو وینو پــــالم
کــه حاجت یې قرباني زمـــــا د تن شي
کـــــــه غلیم له ما برې یوور محبوبې
ستا پړونی دې زمـــا د تن کفــــــن شي

همېش خلیل

## د متن لنډیز:

په پورته شعر کې شاعر له خپل وطن سره مینه څرګندوي. ختن په چین کې یوه سیمه ده. ډېره ښکلې او ښایسته ده. شاعر وایي چې په ختن باندې هم خپل وطن نه بدلوم. شاعر وایي که وطن زما قربانۍ ته اړتیا پیدا کړي، نو زه د خپلواکۍ د ساتلو لپاره هر ډول قربانۍ ته چمتو یم.



## فعالیتونه

۱ـ د زده کوونکو یوه شپږ کسیزه ډله دې پورته شعر په ګډه په ښکلي غږ وواییي.

۲ ـ لس تنه دمخه ټاکل شوي زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د خپلواکۍ په اړه یوه، یوه دقیقه خبرې وکړي.

۳ ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د هرې ډلې یو غړی دې د بلې ډلې له یوغړي څخه یوه پوښتنه وکړي او هغه دې ځواب وواییي. پوښتنې دې ډېرې لنډې وي. لاندې بېلګه وګورئ:

یو زده کوونکی: خپلواکي څه ته وایي؟

بل زده کوونکی: آزاد ژوند ته خپلواکي وایي.

٤ـ زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي. د لومړۍ ډلې یو غړی دې په وار د دویمې ډلې له یو تن څخه لاندې یوه نوې کلمه وپوښتي. د دویمې ډلې غړی دې هغه معنا کړي او د درېیمې ډلې غړی دې هغه په لنډه جمله کې وکاروي.

مریيتوب، ورته، خوند، خپلواک، لولو (لوستل)، موتۍ، وینې، پالل، تن، برى، پړونی، مینه، ښکلې، اړتیا

۵ـ زده کوونکي دې په متن کې بېلا بېلې (ی) ګانې په ګوته کړي.

٦ ـ دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې سرته ورسوي:

لومړی: نسیمه ستړې مه شې.

دویم: ته ستړی مه شې، ګلابه

لومړی: چېرته روان یې، نسیمه؟

دویم: جشن ته ځم.

لومړی: رښتیا، نور در سره څوك دي؟

دویم: یوازې یم. څوك راسره نشته.

لومړی: ودې نه ویل، دا د څه شي جشن دی؟

دویم: ته خبر نه یې؟ دا د وطن د خپلواکۍ جشن دی.

لومړی: د وطن د خپلواکۍ جشن؟ زموږ هېواد کله خپلواکي اخیستې ده، نسیمه؟

دویم: زموږ هېواد په یو زرو دوه سوه اته نوي یم (۱۲۹۸) کال کې بېرته خپلواك شوی دی.

لومړی: کور دې آباد ګلابه، څه چې دربانديې ناوخته نشي.

دویم: په مخه دې ښه، نسیمه.




## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د خپلواکۍ په اړه پنځه، پنځه جملې ولیکي او بله ورځ دې ټولګي ته راوړي.

انګلیسي شاعر برناردشاو Bernard shaw وايي، ولسونه د آزادۍ له لارې ښوونې او روزنې ته لار پیدا کوي، نه د ښوونې او روزنې له لارې آزادۍ ته.



اتم لوست

# ناروغ او ډاکټر

## خبرې اترې

■ آیا کله هم ناروغ شوي یاست؟

انسان په ژوند کې هرو مرو ناروغ کیږي. ناروغ انسان سم کار نشي کولای. ناروغ انسان له ژوند څخه خوند نه اخلي. د ناروغۍ پرمهال ښایي چې ډاکټر ته ورشو. هره ناروغي خپل، خپل ډاکټر لري. نوموړي ډاکټر په همدې ناروغۍ کې څېړنه کړې وي او ځان یې رسولی وي.

■ ستاسو په اند د ناروغۍ په وخت کې باید څه وکړو؟

کېدای شي انسان په راز راز ناروغیو اخته شي. ځینې ناروغۍ سطحي وي، خو بیا هم د ډاکټر لارښوونې ته اړتیا لري. ځینې ناروغۍ ډېرې خطرناکې وي. سړی وژني. که ناروغ په خپل وخت ډاکټر ته لاړ نشي، ښایي ناروغي یې ډېره اوږده او بیا د همدې ناروغۍ له امله مړ شي. ډاکټران په بېلابېلو ناروغیو کې څېړنه کوي او مهارت ترلاسه کوي. یو شمېر یې د جراحۍ په برخه کې ځانونه رسوي او نور یې په داخله ناروغیو کې. په جراحي ناروغیو کې بېلې بېلې څانګې شته. لکه د هډوکو ناروغي (ارتوپیدي)، د اعصابو جراحي، د بولي جهاز ناروغي او نور. له جراحۍ پرته نورې ناروغۍ هم شته، لکه د غوږ، پوزې او ستوني ناروغۍ، د پوستکي ناروغي، د معدې، ځیګر، سږي، زړه، کولمو، ګېډې، سترګو، نري رنځ (توبرکلوز)، شکر (دیابیتس) او داسې نورې ناروغۍ.

موږ او تاسې باید خپلې روغتیا ته پام وکړو. پرې نږدو چې ژر ژر ناروغه شو. که ناروغه شو، سمدلاسه ډاکټر ته لاړ شو. د ډاکټر لارښوونې په پام کې ونیسو. د هرې ناروغۍ اړوند ډاکټر ته لاړ شو. درمل له سم درملتون څخه واخلو. په خپل وخت یې وخورو. درمل په داسې ځای کې کښېږدو چې د ماشومانو لاس ورته ونه رسېږي. روغ بدن د انسان شتمني ده. خپله شتمني باید له لاسه ور نه کړو.

### د متن لنډیز

روغتیا شتمني ده. د روغتیا په قدر هغه مهال پوهېږو، چې ناروغه شو. ناروغ سړی کار نشي کولای. له ژوند څخه خوند نشي اخیستلای. تګ او راتګ ورته ګران وي. کله ناکله د ناروغ سړي اشتها ورکېږي. هیڅ شي ته یې زړه نه کېږي. هر شی ورباندې بد لګېږي. له یوې خوا ناروغي، له بلې خوا نه خوراك او ورسره درمل سړی ډېر کمزوری کوي. راځئ، زیار وباسو چې ناروغه نشو. که بیا هم ناروغي راپېښه شوه، باید ډېر ژر یې درملنه وکړو. ډاکټر ته لاړ شو. ځان معاینه کړو او د ډاکټر له لارښوونې سره سم درمل وخورو.



## فعالیتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او لاندې خبرې اترې دې تکرار کړي:

زلمی: پسرلیه، ستړی مه شې.

پسرلی: خوار مه شې، زلمیه.

زلمی:پسرلیه، ولې غلی یې؟ ناروغ خو به نه یې؟

پسرلی: زلمیه، ګېډه مې ډېره خوږیږي. مړ یې کړم.

زلمی: څه شی دې خوړلي؟

پسرلی: نه پوهیږم، خو پرون مې په ښار کې توتان خوړلي.

زلمی: پسرلیه، په ښار کې توتان مه خوره. کله کله هغه پاک نه وي.

پسرلی: ورک یې کړه، اوس راته وایه چې څه وکړم؟

زلمی: ډاکټر ته لاړ شه چې درمل درکړي. ګوره چې په خپل سر درمل ونه خورې. نور به دې هم ناروغ کړي.

پسرلی: مننه زلمیه، دادی همدا اوس ځم.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او لاندې خبرې اترې دې وکړي:

پسرلی: احمده، ګېډه مې خوږیږي، چاته لاړ شم؟

احمد: پسرلیه، شفا دې وي. هغه مخامخ ډاکټر ته ورشه. ښه ډاکټر دی.

پسرلی: زه هغه نه پېژنم. ته راسره لاړ شه.

احمد: ښه، راځه چې ځو.

پسرلی: ته مخکې شه، احمده!

پسرلی: ښه.

احمد: السلام علیکم، ډاکټر صاحب، دا ملګری مې پسرلی نومېږي او ناروغ دی.

ډاکټر: راشه پسرلیه، پر دې مېز څمله.

ډاکټر: پسرلیه څه دربانديې شوي؟

پسرلی: نه پوهېږم ډاکټر صاحب، هغه ورځ مې په بازار کې توتان خوړلي وو، اوس مې ګېډه خوږېږي.

ډاکټر: ښه دې نه وو کړي زلمیه. د بازار توتان پاک نه وي. خاورې دوړې وربانديې ناستې وي. ککړ وي. که څوک یې وخوري د کانګې او نس ناستي په ناروغۍ اخته کېږي. ته خو ښه یې کانګې نه کوې.

پسرلی: ډاکټر صاحب، اوس څه وکړم؟

ډاکټر: اندېښنه مه کوه پسرلیه! درمل درکوم، په خپل وخت یې وخوره. که خدای ﷻ کړي وي ښه به شې.

پسرلی: مننه ډاکټر صاحب. څه پرهېز وکړم؟

ډاکټر: پسرلی، داسې کوم خاص پرهېز نشته. خو ګوره چې ناپاک شیان، ناپاکې اوبه، ناپاک تازه سابه او خامې مېوې ونه خورې. لاسونه دې تل په پاکو اوبو او صابون پرېمنځه.

پسرلی: مننه ډاکټر صاحب. د خدای په امان.

ډاکټر: په مخه دې ښه، زلمیه.

۳_ دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې د ټولګي په وړاندې سرته ورسوي:

پسرلی: میرویسه، دا درمل چېرته واخلم؟

میرویس: ته راکړه، څه شی دي؟

پسرلی: واخله، ګېډه مې خوږېده، ډاکټر دا نسخه راکړه.

میرویس: دغه مخامخ درملتون ته ورشه.

پسرلی: کور دې ودان، میرویسه.

پسرلی: وروره، دا درمل درسره شته؟

درملتون والا: ته راکړه، څه شی دي؟

پسرلی: دادی واخله.

درملتون والا: هـ...م، هـ.....ا، هو لرم یې.
پسرلی: څو افغانۍ کیږي؟
درملتون والا: ټولې یو سلو شپېته افغانۍ کیږي.
پسرلی: را یې کړه، خیر یوسې.
درملتون والا: هه وروره، ګولۍ د ورځې درې ځله له ډوډۍ نه مخکې. شربت دوه ځلې، سهار او ماښام له ډوډۍ نه وروسته او دا کپسول به دوه، دوه دانې څلور ځلې په ورځ ګېډه خورې.
پسرلی: پیسې دې واخله، مننه، خدای په امان.
درملتون والا: کور دې ودان، په مخه دې ښه.

**۴ـ دوه تنه زده کوونکي دې دا لاندې محاوره سرته ورسوي:**

لومړی -تورپیکۍ سترې مه شې.
دویم- ښاده شې، نسرین. څنګه یې؟
لومړی- ښه یم خورې. ته څنګه یې؟
دویم - زه هم ښه یم. چیرته روانه یې، تورپیکۍ؟
لومړی- نسرین خورې. سبا مو د پښتو آزموینه ده.
دویم- درس لولې؟
لومړی- هو، د یو څو ناروغیو نومونه مې په کار دي.
دویم- ښه ده. زه به یې درته ووایم.
توره ټوخله، ژیړی، نسخوړی، نری رنځ، شری، نس ناسته.
لومړی ـ څومره ښه. نسرین جانې کور دې ودان. دا راته وښایه چې څه شي ته وایي؟
دویم ـ توره ټوخله (سیاه سرفه) - ژیړی (زردي)- نسخوړی(پیچش) - نری رنځ (سل) - شری (سرخکان) او نس ناسته د اسهال معنا لري.
لومړی ـ په خیر اوسې، نسرین جانې، راځه، چې چای وڅښو.

دویم ــ ښه ده، راځه!

**۵ــ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او لاندې خبرې اترې دې سرته ورسوي:**

لومړی: جلاله، ستړی مه شې!

دویم: بریه، ته ستړی مه شې! څه کوې؟

لومړی: څه به وکړم بریه، ناروغ یم.

دویم: ولې، ډاکټر ته نه وې تللی؟

لومړی: تللی وم، خو په ناروغۍ مې پوه نشو.

دویم: څه یې درته وویل؟

لومړی: مشوره یې راکړه چې د معایناتو لپاره روغتون ته لاړشم.

دویم: دا خو ښه خبره ده؟

لومړی: ښه ده، خو نه پوهیږم چې ګټه به وکړي، که نه؟

دویم: هرو مرو ګټه کوي. لاړ شه او معاینات دې بشپړ کړه. کېدای شي درسره مرسته وکړي.

لومړی: هوکې، ځمه. ستا دې کور ودان وي. خدای په امان!

دویم: په مخه دې ښه، روغتیا دې په برخه شه!



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپل کور کې له خپلې خور یا ورور سره د یوې موضوع په اړه خبرې اترې وکړي او هغه دې د کتابچې په یوه مخ کې ولیکي.



نهم لوست

# زده کړه



■ زده کړه څه شي ته وايي؟

انسان د ژوند په لومړيو کې په هر شي نه پوهيږي. کله چې لوييږي، نو پوهه يې هم زياتيږي. داسې پوهه شته چې له زده کړې پرته نه تر لاسه کيږي. ددې لپاره بايد زده کړه وکړو. زده کړه هر وخت کېدای شي. زده کړه د انسان طبيعي حق دی. هيڅوک بايد له زده کړې بې برخې نشي.

■ مور ولې زده کړه کوو؟

■ آيا له زده کړې پرته پوهه تر لاسه کېدای شي؟

پر یو نوي شي باندې پوهېدلو ته زده کړه وایي. انسان په کوچنیوالي کې په ډېرو شیانو نه پوهیږي. یو څه شیان په کور کې له مور او پلاره زده کوي، له ورونو او خویندو یې زده کوي، په کوڅه کې یې له همزولو زده کوي، په جومات کې یې له دیني عالمانو زده کوي، په ښوونځي کې یې له ښوونکو زده کوي او په پای کې یې د ژوند په اوږدو کې له خپل چاپېریال څخه زده کوي. زده کړه یو بهیر دی. له ماشومتوب څخه پیل کیږي او تر مرګ پورې دوام مومي. زده کړه انسان له بدمرغۍ ژغوري. په زده کړه سړی ځان او جهان پېژني. هغه چا چې زده کړه کړې وي، هوسا ژوند لري. په ښو او بدو پوهیږي. د زده کړې له لارې سړی خلکو ته نژدې کېږي. د خلکو په زړونو کې ځای مومي. خلکو ته ګرانیږي. ناپوهي رنځ دی. ناپوهي تورتم دی. ناپوهي توره بلا ده. ناپوهي سړی کندې ته اچوي. ناپوهي د سړي ژوند تریخوي. له ناپوهانو سره ناسته ولاړه ښه نه ده. هرڅوك باید زده کړه وکړي. هرچاته باید د زده کړې شرایط چمتو شي. د علم زده کړه پر ټولو مسلمانانو باندې فرض ده. هر نارینه او ښځه باید زده کړه وکړي. زده کړه د انسانانو طبیعي حق دی.

**د متن لنډیز:**

ماشومان ټول شیان په کور کې نشي زده کولای. یو څه شیان په کور کې زده کوي، خو نور زیات باید له کوره بهر زده کړي. دیني زده کړې له کوره او جوماته پیلیږي او په ښوونځي کې دوام مومي. زده کړه د هر انسان حق دی. زده کړه په هر مسلمان نارینه او ښځې باندې فرض ده. د انسانانو توپیر پر زده کړه او پوهه کیږي. پوه انسان تر ناپوه انسانه غوره او بهتر دی. انسان پر پوهه انسان کېږي. انسان پر پوهه نېکمرغه کیږي. هېواد پر پوهه آبادیږي او یوه ټولنه پر پوهه پرمختګ کوي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې پر څلورو ډلو وویشل شي:

- لومړۍ ډله دې د متن دوه، دوه لیکنې د نورو په وړاندې ولولي.
- دویمه ډله دې په متن کې نوې کلمې پیدا کړي.
- دریمه ډله دې هم معنا کلمې ولټوي او ودې لیکي.
- څلورمه ډله دې د (ی گانو) مختلف ډولونه په نښه کړي.

۲ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- زده کړه څه شي ته وایي؟
- ښوونځی د څه شي ځای دی؟
- لوستي او نالوستي خلك ولې سره برابر نه دي؟
- په پورته لوست کې دا لاندې نوې کلمې معنا او په جملو کې یې وکاروئ:

زده کړه، کوچنیوالی، مور، پلار، ورور، خور، لوییرې، کوڅه، همزولی، جومات، پای، چاپیریال، بهیر، ماشومتوب، پیل، چمتو، نارینه، ښځه.

۳ـ څو تنه زده کوونکې دې په خپله خوښه د ټولګې مخې ته راشي او د زده کړې په باره کې دې یوه، یوه دقیقه خبرې وکړي.

٤ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو خالي ځایونه په پنسل ډک کړي:

الف: پر یو نوي شي باندې پوهېدلو ته ....... وایي.

ب: انسان په ....... کې په ډېرو شیانو نه پوهیږي.

ج : زده کړه یو ..... دی.

د : ...... باید زده کړه وکړي.

هـ : د ........ زده کړه پر ټولو مسلمانانو باندې فرض ده.

و: زده کړه د انسانانو.... حق دی.

٥ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د زده کړې په هکله یو له بل سره خبرې وکړي. (محاوره)

٦ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ناروغتیا په اړه په خپلومنځو کې خبرې وکړي.




## کورنی دنده

زده کوونکي دې په کور کې د زده کړې په باره کې پنځه، پنځه کرښې مقاله ولیکي او ښوونځي ته دې راوړي.

> هغه چا چې زیاته زده کړه کړې وي، قدر یې زیات او چا چې لږه زده کړه کړې وي، قدر یې لږ دی.
>
> حضرت محمد ﷺ



لسم لوست

# د یووالي گټه



■ یووالی څه ته وایي؟

یووالی له کورنۍ نه نیولې تر یو هېواده ډېر ضروري دی. څنگه چې یوه کورنۍ د بې اتفاقۍ له کبله خرابېږي، همدارنگه یو هېواد هم د خپلو وگړو له بې اتفاقۍ څخه ډېر زیان مومي. یووالی انساني قوت دی. زور او قوت انسان بریالی کوي. په یووالی سره خپل هېواد ساتلای شي. د یووالي په برکت سړی پر دښمن بری تر لاسه کوي.

■ تاسو د یووالي د ارزښت په اړه څه معلومات لرئ؟

■ د یووالي گټې څه دي؟

یوه ورځ یوه ډله کوترې وږې شوې وې. د دانو په لټولو پسې یوې خوا او بلې خوا الوتلې.
په پای کې په یوې کروندې کې کښېناستې. هلته د غنمو دانې پرتې وې. یوې کوترې ولېدلې.
والوته او هلته کښېناسته. د دانو په ټولولو یې پیل وکړ. نورې کوترې هم ورپسې ورغلې.
هغوی هم په دانو ټولولو لګیا شوې. کله چې په نس مړې شوې، والوتې. څو کوترې په دام
کې نښتې وې، وانه الوتلای شوې. هرې یوې ټوپونه وهل چې ځان خلاص کړي، خو ونه
توانېدې.

په دوی کې یوه هوښیاره کوتره وه. هغې وویل: ((هغه وخت چې موږ دا خوندورې
دانې لېدلې وې، باید فکر مو کړی وای چې دا دانې چا او د څه لپاره اچولې دي؟ که مو
فکر کړی وای په دې غم به نه اخته کېدو. اوس هم باید یو فکر وکړو. کېدای شي ځانونه
خلاص کړو. لږه دمه وکړئ. کله چې ما وویل والوزئ، نو ټولې په یو دم له ځایه پورته
شئ.))

ښکاري چې لږ څه وړاندې ناست و، ویې لیدل چې کوترې په دام کې نښتې دي.
ورمنډه یې کړه. په دې وخت کې هغې هوښیارې کوترې وویل: ((والوزئ!)) ټولې کوترې یو
دم له ځمکې پورته شوې. والوتې. دام یې له ځان سره پورته کړ او لاړې.

ښکاري چې دا حال ولید، د کوترو په لور یې ورمنډه کړه. لږه شېبه وروسته یې کوترې
له سترګو پنا شوې. د ښکاري تمه پرې شوه او ستړی ستومانه راستون شو.

**د متن لنډيز:**

کوترې وږې وې. د دانو خوړلو لپاره په یوې کروندې کې کښېناستې. په دانو خوړلو
یې پیل وکړ. خبرې نه وې چې ښکاري ورته دام ایښی و. غوښتل یې چې والوزي.
څو کوترې په دام کې نښتې وې. یوې هوښیارې کوترې یوه لاره وسنجوله. ټولو
ورسره ومنله. په یو غږ والوتې او د ښکاري له منګولو یې ځانونه خلاص کړل. دا د
یووالي او اتفاق برکت و.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- یووالی څه شي ته وايي؟
- یووالی څه ګټې لري؟
- کوترې په څه چل والوتې؟
- د یو آزاد ولس د بري راز څه شی دی؟
- څنګه کولای شو یو بریالی هېواد واوسو؟

۲ـ د لاندې هرې پوښتنې لپاره درې، درې ځوابونه درکړل شوي، تاسو يې تر ټولو سم ځواب په نښه کړئ:

- کوترې چېرته کښېناستې؟

الف: په باغ کې

ب : د ونو په ځنګل کې

ج : په کروندې کې

- کوترې ولې وانه الوتلې؟

الف: ټولې ترلې وې.

ب : په دام کې نښتې وې.

ج : ښکاري نیولې وې.

- کوترې د څه شي په برکت د ښکاري له لاسه ووتې؟

الف: د ډېر مړښت په برکت

ب : د الوتلو په برکت

ج : د یووالي او اتفاق په برکت

۳_ د زده کوونکو څو تنه دې د پخواني وار له  مخې د ټولګي مخې ته راشي او د یووالي په اړه دې یوه، یوه دقیقه خبرې وکړي.

٤_ زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي. د متن دغه لاندې نوې کلمې دې د یوې ډلې یو زده کوونکی ولولي، د دویمې ډلې یو زده کوونکی دې هغه معنا کړي او د درېیمې ډلې بل زده کوونکی دې هغه په جملو کې وکاروي:

ډله، کوتره، وربې، لټول، الوتل، پای، کرونده، غنم، مرېې، نښتې، ټوپونه، خوندور، اخته، دمه، الوتل، ښکاري، وراندې، منډه، پنا، تمه، ستومانه، راستون

٥_ د زده کوونکو دوه، دوه تنه دې د ټولګي په وړاندې راشي او په خپلو منځونو کې دې د لاندې مثال په څېر خبرې اترې وکړي:

- زلمی: اختره، څو کلن یې؟
- اختر: پوره څوارلس کلن یم. زلمیه ته به څو کلن یې؟
- زلمی: نه پوهیږم، خو پلار مې وایي چې دیارلس کلن به یم.
- اختر: کور دې له ښوونځي څخه څومره لېرې دی، زلمیه؟
- زلمی: پنځلس دقیقې لاره به وي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د اتفاق او یووالي په باره کې یو څو کرښې مقاله ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې ولولي.





# ښوونه او روزنه

■ موږ ولې ليک او لوست زده کوو؟

ليک لوست د زده کړې په معنا دی. زده کړه انسان ته د يوې موضوع د ليکلو او لوستلو وړتيا ورکوي. د بدن د پياوړتيا او ودې لپاره ورزش او خواړه اهميت لري. د ذهن او فکر د ودې او پياوړتيا لپاره زده کړه ارزښت لري. د زده کړې له لارې انسان ځان او جهان پېژني. خپل خدایﷻ پېژني، د خپل شاوخوا شيان پېژني او د دوست او دښمن توپيرکولای شي. د زده کړې له لارې انسان خپل وطن ودانولای شي او د خپلو خلکو اوهېوادوالو لپاره ښه خدمت کولای شي.

■ لوستي او نالوستي خلک يو له بله څه توپير لري؟

زموږ په هېواد کې د زده کړې بهير له ډېر پخوا څخه پيل شوی دی. په بېلا بېلو لارو يې پراختيا کړې ده. پخوا به هلکانو اونجونو په جوماتونو کې ديني زده کړې کولې. دې زده کړو ته غير رسمي زده کړې ويل کېدې.

د وخت په تېرېدو ددې زده کړو ترڅنګ رسمي زده کړې پيل شوې. د زده کړې منظمې دورې رامنځته شوې. لکه لومړني ښوونځي، منځني ښوونځي، ثانوي ښوونځي يا لېسې او نور. په دې ښوونځيو کې د ټولنې د اړتياوو له مخې ټاکلي درسي کتابونه لوستل کېږي.

زموږ په هېواد کې عصري زده کړې د امير شېرعلي خان په وخت کې پيل او د رسمي او اساسي زده کړو بنسټ د امير حبيب الله خان د پاچهۍ پر مهال کېښودل شو. لومړنی ښوونځی د حبيبيې د لېسې په نوم پرانيستل شو. اوس دا زده کړې ډېرې پراخې شوې دي. له لومړنيو او منځنيو زده کړو سربېره ثانوي زده کړې، مسلکي زده کړې، د لوړو زده کړې او لوړې زده کړې شته. په مليونونو هلکان او نجونې يکې لوست لولي او د هېواد لپاره ديني عالمان، قاضيان، ښوونکي، طبيبان (ډاکټران)، انجينران، اقتصاد پوهان او نور روزي.

**د متن لنډيز:**

زده کړه د انساني ژوند د نېکمرغۍ کلي ده. زده کړه له انسان سره مرسته کوي چې ښه له بدوڅخه توپير کړي. زده کړه د ژوند اړتيا ده. بې له زده کړې ژوند تورتم دی. په تورتم کې سړی خپله شاوخوا نه شي ليدلای. د شيانو د ليدلو لپاره رڼا ته اړتيا ده او رڼا پوهنه ده. د ژوند ټولې نېکمرغۍ او خوشحالۍ په زده کړې کې پرتې دي. موږ بايد په خپله زده کړه وکړو او نور هم هڅې ته وهڅوو. پرې نه ږدو چې يو هلک او نجلۍ هم له زده کړو بې برخې پاتې شي.



## فعالیتونه

۱ــ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- د بدن ودې ته ورزش ارزښت لري، د ذهن ودې ته څه شی ارزښت لري؟
- د انساني ژوند د نېکمرغۍ کلي څه شی ده؟
- مور ولې زده کړه کوو؟

۲ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د هرې ډلې يو غړی دې د بلې ډلې له غړي څخه پوښتنه وکړي او ځواب ته دې غوږ کېږدي. د بېلګې په توګه:

زلمی: احمده، ته ولې ښوونځي ته راځې؟

احمد: زه غواړم چې زده کړه وکړم. ته ولې راځې، زلميه؟

زلمی: زه غواړم چې ښوونځی ولولم او ډاکټر شم.

۳ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي.

- لومړۍ ډله دې د پوهو اوناپوهو خلکو د توپیر په هکله خبرې وکړي او خپلې تجربې دې وليکي. بيا دې يو تن د نورو په وړاندې پرې وغږېږي.
- دويمه ډله دې په هېواد کې د زده کړې د بهير پر ودې وغږېږي او بيا دې يو تن استازی د خپلې ډلې تجربې د نورو په وړاندې بيان کړي.

٤ـ زده کوونکي دې په وار سره لاندې کلمې معنا او په جملو کې دې راوړي:
ليك لوست، وړتيا، پياوړتيا، وده، ارزښت، پېژندل، توپير، ودان، اړتيا، ټاکلی، بنسټ، مهال، روزل، نېكمرغي، کلي، تورتم، رڼا

٥ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې خوښې پر يوې موضوع دې خبرې وکړي.

٦ ـ زده کوونکي دې لاندې متن ولولي. د بېلابېلو ((ی)) ګانو بېلګې دې په نښه او په کتابچوو کې دې د هغوی له نومونو سره يوځای وليکي.
احمد زړور سړی دی. هغه په يوازې ځان ځنګل ته ځي. هلته بوټي راټولوي. بيا يې بازار ته راوړي. ما يوه ورځ په بازار کې وليد. څپلی يې په پښو نه وې. يو ځای کې ولاړ و، نارې يې وهلې: ((ای خلکو، واخلئ، وچ لرګي دي. ارزانه دي. بيا به ارمان کوئ!))

٧ـ يو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او ودې وايي چې له کوم ټولګي څخه يې لوست پيل کړی، اوس په کوم ټولګي کې دی؟ او په راتلونکي کې څه غواړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې د ليك لوست په هکله پنځه کرښې مقاله وليکي او بله ورځ دې يې د ټولګيوالو په وړاندې ولولي.





# روغتیا



■ مور ولې ناروغه کيږو؟

انسان په ژوند کې له ډول ډول ناروغيو سره مخامخ کيږي. يو شمېر ناروغۍ د انسان په بې پروايۍ پورې اړه لري. يو شمېر يې ساري ناروغۍ دي. دا ناروغۍ له يوه انسان څخه بل انسان ته ځي. يو شمېر ناروغۍ د انسان له واک څخه وتلي دي. مور بايد تل خپلې روغتيا ته پام وکړو. روغتيا لوی نعمت دی. په قدر يې هغه خلک ښه پوهيږي چې يو ځل ناروغ شي.

■ د ناروغۍ د مخنيوي لپاره بايد څه وکړو؟

کله چې د انسان بدن سم کار ونه کړي، نو وايو چې ناروغه دی. ناروغ بدن د کار نه وي. نه ځان او نه بل چا ته کار کولای شي. يو شمېر ناروغۍ د انسان له بې پروايۍ څخه پيدا کيږي. که د انسان بدن ناپاك وي، ناروغه کيږي. که د انسان نوکان اوږده وي، ميکروبونه تر نوکانو لاندې پټيږي او له خوړو سره يو ځای بدن ته ننوزي او انسان ناروغه کوي. که خواړه له مچانو او نورو ناپاکيو خوندي نه وي او سړی يې وخوري، ناروغه کيږي. که څوك له يو داسې ناروغ سره ناسته ولاړه وکړي چې په ساري ناروغۍ اخته وي، نو ناروغه کيږي. له دې امله بايد د انسان نوکان تل پاك وي، اوږدوالي ته يې پرې نږدي. له اودس ماتي څخه وروسته بايد لاسونه پر صابون (که صابون نه وي، پر ايرو) پرېمنځو. د گرمۍ په موسم کې په اوونۍ کې هره ورځ که نه وي، نو دوه يا درې ځلې ځانونه بايد په پاکو اوبو پرېمنځو. جامې مو بايد پاکې وي، خپل خواړه له مچانو او نورو ناپاکيو څخه بايد خوندي وساتو. هغه سابه چې خام خوړل کيږي، بايد تر خوړلو دمخه يې پاك پرېمنځو. مېوه بايد خامه او ناپرېمنځلې ونه خورو. له نسوارو، چلم او سگريټ څخه ډډه وکړو. له هغو ناروغانو سره په ډېر پام ناسته ولاړه وکړو چې په ساري ناروغيو اخته وي. لنډه دا چې له ناروغيو څخه د ځان د ساتلو لپاره بايد ټول هغه څه وکړو چې له وسې مو پوره وي. وايي، روغ عقل په روغ بدن کې وي.

**د متن لنډيز:**

روغتيا د انسان مال او شته (بډايي) دي. انسان بايد خپل مال او شته وړيا له لاسه ورنه کړي. د ناروغيو د مخنيوي لپاره بايد روغتيايي لارښوونې په پام کې ونيسو. خپل بدن، جامې، خواړه، اوبه او د ناستې ولاړې ځايونه مو بايد تل پاك او سوتره وي. هغه شيان ونه خورو چې بدن مو په ناروغيو اخته کوي. نشه او د نشه يي توکو کارول بدن ته زيان رسوي. د ډاکټر له لارښوونې پرته د درملو کارول ښه نه دي. وايي د روغتيا ساتنه تر درملو آسانه او ارزانه ده.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- روغتيا څه ته وايي؟
- د روغتيا د ساتلو لپاره بايد څه وکړو؟
- کوم شيان د ناروغۍ لامل کيږي؟
- ميکروبونه څنګه د انسان بدن ته ننوزي؟

۲ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځايونه په مناسو کلمو په پنسل ډک کړي:

- ......... د انسان مال او شته دي.
- انسان بايد خپل ....... وريا له لاسه ورنه کړي.
- د ناروغيو د........... لپاره بايد روغتيايي لارښوونې په پام کې ونيسو.
- بدن او جامې مو بايد تل ..... او........ وي.
- هغه شيان ......... چې بدن مو پر ناروغيو اخته کوي.
- نشه او د نشه يي توکو کارول بدن ته ......... رسوي.
- د ډاکټر له ........ پرته د درملو کارول ښه نه دي.

۳ـ زده کوونکي دې په لوست کې بېلا بېلې (ی ګانې) په نښه کړي.

٤ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د هرې ډلې يو تن غړی دې په وار سره دبلې ډلې له غړي څخه د لاندې بېلګې له مخې پوښتنې وکړي او ځوابونو ته دې غوږ کيږدي:

يو زده کوونکی: ستا نوم څه دی او څو کلن يې؟

بل زده کوونکی: زما نوم ...... دی او ...... کلن یم. ته څو کلن یې اوچېرته اوسیږې؟
لومړی زده کوونکی: زه څوارلس کلن یم او په بادغیس کې اوسیږم

۵ـ دوه تنه زده کوونکي دې د بېلا بېلو ناروغیو د نومونو او له ناروغۍ څخه د ځان د ساتنې په اړه د ټولګي په وړاندې خبرې اترې وکړي.

۶ـ یو تن زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي او ودې وایي چې ورور یې ناروغ دی، ډاکټر ته یې وړی او له کتنې او معاینې وروسته یې درمل ورکړي. ټوله کیسه دې نورو ټولګیوالو ته وکړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د روغتیا د ګټو په هکله پنځه کرښې ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې ووایي.

فرانسس بیکن وایي:
روغ بدن د روح لپاره میلمستون دی او ناروغ بدن، زندان.





# د مطالعې ارزښت

## خبرې اترې




- مطالعه څه ته وايي؟

انسانان په ټولو شيانو نه پوهيږي. ټوله پوهه په يو کتاب کې نشته. په بېلا بېلو ځانګو او برخو کې د مختلفو پوهو په اړه مختلفې ليکنې کيږي. دا ليکنه به يا د کتاب په بڼه وي، يا به مجله او ورځپاڼه وي او يا به بله کومه ليکنه وي. ددې مختلفو ليکنود يوې يا ټولو لوستلو ته مطالعه وايي. انسان ددې ليکنو له لارې خپله پوهه زياتوي.

- مطالعه څه ارزښت لري؟
- موږ څنګه خپله پوهه زیاتولای شو؟

موږ د خوړو له لارې خپل بدن پیاوړی کوو. د بدن د پیاوړتیا لپاره راز راز خواړه خورو. ټول غذايي توکي په یو راز خوړو کې نه وي. له دې امله کله غوښه خورو، کله سابه، کله لوبیا، کله چنې. همدارنګه کوچ، شېدې، مستې او پېروی هم خورو. مېوه او سابه زموږ خواړه بډایوي.

د ذهن د پیاوړتیا لپاره باید څه وکړو؟

ذهن د راز راز کتابونو او لیکلو پاڼو د لوستلو او مطالعې له لارې پیاوړی کیږي. له دې امله باید د درسي کتابونو تر څنګ نور کتابونه، مجلې، ورځپاڼې او لیکنې ولولو. هغسې چې د خوړو له لارې بدن پیاوړی کیږي، همداسې د مطالعې له لارې خپل ذهن پیاوړی کړو.

دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او لاندې خبرې اترې دې تر سره کړي:

زرلښته: مینې خورې ستړې مه شې.

مینه: خواره مه شې، خورې ښه یې؟

زرلښته: ښه یم، ته ښه یې؟

مینه: مننه، زه هم ښه یم. زرلښتې، دا لاس کې دې څه شی دی؟

زرلښته: دا یو کتاب دی. په زړه پورې کیسې لري.

مینه: ته یې راکړه چې ویې ګورم.

زرلښته: دادی، واخله! پام کوه چې ونه شکېږي.

مینه: واه، څه ښه انځورونه لري.

دوه تنه نور زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او لاندې ډیالوګ دې ووایي:

نرګس: د کتاب لوستل څه ګټه لري؟

غاټول: د کتاب لوستل د انسان پوهه زیاتوي.

نرګس: خو دا د ښوونځي کتابونه لولو، دا بس نه دي؟

غاټول: نه خورې، د ښوونځي د کتابونو په لوستلو خو موږ د لوستلو چل زده کوو.

نرگس: څنګه، غاټول؟

غاټول: په ښوونځي کې لیک لوست زده کوو. کله چې مو لیک لوست زده کړ، بیا خپله پوهه زیاتوو. ټوله پوهه د ښوونځي په کتابونو کې نشته.

نرگس: دا خو دې ښه خبره وکړه، خیر یوسې.

غاټول: هو همداسې ده. که غواړو چې ذهن مو وده وکړي، باید هر راز کتابونه ولولو.

نرگس: مننه خورې.

غاټول: مننه، په مخه دې ښه.

دوه تنه نور زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې لاندې دیالوګ اجرا کړي:

پښتنه: زرمینې څه کوې؟

زرمینه: مطالعه کوم.

پښتنه: څه شی لولې؟

زرمینه: سبا د تاریخ آزموینه لرم. د افغانستان تاریخ لولم.

پښتنه: څومره ښه، ته راکړه.

زرمینه: واخله.

پښتنه: زرمینې دا خو ډېر ښه کتاب دی!

زرمینه: هو، دا د افغانستان اوسنی تاریخ دی. ډېر معلومات لري.

پښتنه: خورې، که خپه کیږې نه چې آزموینه دې تېره شوه، دا کتاب به ماته امانت راکوې.

زرمینه: ولې نه، بل کتاب هم لرم. اوس به دا درکړم. ویې لوله. بیا به د افغانستان لنډ تاریخ هم درکړم.

پښتنه: مننه، زرمینې. کور دې ودان!

زرمینه: پښتنې، پام کوه چې کتاب درنه ماشومان و نه شکوي.

پښتنه: ښه ده پام به پرې کوم.

**د متن لنډیز:**

مطالعه د انسان ذهن پیاوړی کوي. د هر راز ګټوروکتابونو لوستل ښه دي. مطالعه د انسان ذهن ته وده ورکوي. هر راز معلومات لاس ته راوړي. په دې ډول خپله پوهه زیاتوي. پوهه په کتابونو کې پرته ده. له کتابونو څخه دا پوهه د مطالعې له لارې لاس ته راځي. هر څېرته مطالعه کېدای شي. هر څېرته سړی کتاب، مجله یا ورځپاڼه لوستلای شي. کتاب ښه ملګری دی. هغه له ځان څخه مه لېرې کوئ.



## فعالیت

درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د مطالعې د ارزښت په اړه دې خبرې وکړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې دا پورته دیالوګونه تمرین او په بله ورځ دې په ټولګي کې تکرار کړي.

فرانسس بیکن وایي: مطالعه انسان بشپړوي.



خوارلسم لوست

# کلمه، نوم او ډولونه يې




■ کلمه څه ته وايي؟

هره ژبه ځانته ګرامري قاعدې لري. ګرامر د يوې ژبې جوړښت څېړي. د ګــرامر زده کړه د ژبې زده کړه آسانوي. دمخه مو په پښتو کې د سم ليك او لوست لپاره د (ی) ګانو ډولونه ولوستل. دلته کلمه او د هغې ډولونه په لنډ ډول درپېژنو.

■ د کلمې او د هغې د ډولونو پېژندل له موږ سره څه مرسته کوي؟

هغه لفظ چې د یوې معنا د افادې لپاره له خولې راوځي، کلمه نومیږي. هغه کلمې چې وینا جوړوي، د وینا اجزا (توکي) ورته ویل کیږي. دې توکو ته د کلمې ډولونه هم وایي. جمله لږ تر لږه له دوو کلمو څخه جوړیږي. په پښتو کې نوم، ضمیر، صفت، فعل او قید ته خپلواکې کلمې وایي.

نوم:

نوم هغه کلمه ده چې یو څوک یو ځای او یا یو شی ونوموي، لکه په لاندې جملو کې احمد، زرغونه، ایمل او تیره.

- احمد زما ورور دی.
- زرغونه، نه ده راغلې.
- ایمل ستا ملګری دی.
- دا تیره توره ده.
- د چمتال ولسوالي د بلخ په ولایت کې ده.

الف: نوم د معنا له مخې شپږ ډولونه لري: خاص نوم، عام نوم، ذات نوم، معنا نوم، جنس نوم، جمع نوم.

## ۱_ خاص نوم:

خاص نوم هغه نوم دی چې یو ټاکلی شخص یا ځای ونوموي. لکه:

- ننګرهار د ګلوهار دی.
- احمد شاه بابا د نوي او معاصر افغانستان مؤسس و.
- کابل د افغانستان پلازمېنه ده.
- ایران زموږ ګاونډی هېواد دی.
- د غور ولایت چېرته پروت دی؟

په پورته جملو کې ننګرهار، احمد شاه بابا، کابل، افغانستان، ایران او غور خاص نومونه دي. دا داسې نومونه دي چې د اورېدو پر مهال یې هماغه خلک، ښار او یا هېواد درپه زړه کیږي.

## ۲_ عام نوم:

عام نوم داسې نوم ته وايي چې په يوه ټاکلي شخص يا څيز باندې دلالت نه کوي او د هغې ډلې ټول غړي څرګندوي. بېلګې يې په لاندې جملو کې وګورئ:

- دا يو تکړه هلك دى.
- هېواد پر هر چاګران وي.
- سږکال ټول څاروي مړه شول.
- دا ښځه او سړى څوك پېژني؟

په پورتنيو جملو کې هلك، هېواد، څاروي، ښځه او سړى عام نومونه دي. د هغوى په اورېدو کوم ټاکلى شخص يا څيز د انسان فکر ته نه ورځي.

## ۳_ ذات نوم:

داسې يو نوم نوموي چې زموږ په حواسو حس کېداى شي او بهرنى وجود ولري، لکه په لاندې جملو کې ډبره، مالوچ، خا، اوبه، اوسپنه.

- دا ډبره غټه ده.
- اوسپنه درنه ده که مالوچ؟
- د خا اوبه ډېرې يخې وي.

## ۴_ معنا نوم:

د معنا نوم د ذات د نوم سرچپه يو غير محسوس شي يا پديده نوموي. يا په بله وينا هغه شى نوموي چې بهرنى وجود نه لري، لکه په لاندې جملو کې روغتيا، هيله، ننګ، پت، مېړانه، خوښي، درد، غم، انديښنه.

- روغتيا د نېکمرغه ژوند ضامنه ده.
- هيله ده چې ښه اوسې.
- ننګ، پت او مېړانه پښتني دودونه دي.
- خوښي دې په برخه شه.
- غم او انديښنه ونه ګورې.

### ۵_ د جنس نوم:

هغه شی چې نه شمېرل کېږي یا په لړو او ډېرو شان دلالت کوي، د جنس نوم ورته وایي، لکه په لاندې جملو کې سره زر، اوبه، غنم، جوار او تیل.

- وخت لکه سره زر دی.
- که اوبه نه وي، ژوند به نه وي.
- جوار اوغنم د افغانستان کرنیز محصولات دي.
- بې تېلو څراغ نه بلېږي.

### ۶_ جمع نوم:

کله یو نوم په څرګنده د لفظ له مخې یو مفرد نوم وي، خو په معنا کې یوه ډله یا ټولی نوموي. دې ډول نومونو ته جمع نوم وایي، لکه په لاندې جملو کې ټولنه، ولس، رمه.

- د سرې میاشتې ملي ټولنه له بېوزلو کورنیو سره مرسته کوي.
- دا رمه د لالوکاکا ده.
- افغان ولس له برمه ډک تاریخ لري.

په پښتو کې جمع نوم د ډېرو ډلو په لحاظ بیا هم جمع کېږي، لکه : ټولنې، ولسونه، رمې.

ب: نوم د شمېر له مخې په دوه ډوله دی، مفرد او جمع.

### ۱_ مفرد نوم:

مفرد نوم هغه نوم دی چې د یوې ډلې په یو شخص یا یو څیز دلالت وکړي، لکه په لاندې جملو کې هلک، باغ، ونه، قلم، خاوند، شاعر.

- دا هلک ځانته راغی.
- ددې باغ یوه ونه خرابه ده.
- ستا قلم تور دی.
- بریالی ښه شاعر دی.

## ۲ _ جمع نوم:

جمع نوم هغه نوم دی چې د یوې ډلې له یو څخه زیات اشخاص یا شیان ونوموي، لکه په لاندې جملو کې هلکان، ونې، قلمونه، شاعران.

- دا هلکان څوک دي؟
- زموږ د کلي باغونه تازه دي.
- شاعران د ټولنې لارښوونکي دي.

په پښتو کې د مفرد نوم جمع کول ځانته قاعدې لري. همدا ډول نارينه نوم ځانته او ښځينه نوم ځانته د خپلو قاعدو له مخې جمع کېږي.




۱_ زده کوونکي دې په څو ډلو ووېشل شي:

■ لومړۍ ډله دې خپل شاوخوا ته وګوري او د شخص، څيز یا ځای نومونه دې وليکي.

■ دويمه ډله دې د خپل ټولګي دننه یا بهر د کوم شخص، څيز یا ځای چې خاص نوم په ګوته کړي، پيدا او ودې ليکي.

■ درېمه ډله دې د ټولګي دننه او بهر شيانو، خلکو او ځايونو ته پام وکړي چې کوم عام نومونه پيدا کولای شي. هغه دې وليکي.

■ څلورمه ډله دې د ښوونځي په چاپېريال کې د ذات نومونه پيدا او ودې ليکي.

■ پنځمه ډله دې داسې نومونه وليکي چې بهرنی وجود ونه لري.

■ شپږمه ډله دې په ټولګي یا د ښوونځي په انګړ کې داسې نومونه وليکي چې ونه شمېرل شي.

■ اوومه ډله دې له خپلو شاوخوا شيانو څخه د جمع نوم پيدا او ودې ليکي.

د ټولو ډلو استازي دې خپل کار د نورو په وړاندې ولولي.

۲ـ د زده کوونکو له ډلې څخه دې يو تن د مفرد نوم ووايي او بل دې هغه نوم جمع کړي.

۳ـ د زده کوونکو يوه درې کسيزه ډله دې ووايي چې کلمه له جملې سره څه توپير لري؟ څو مثالونه دې وړاندې کړي. همدا راز ودې وايي چې نوم څه ته وايي. څو مثالونه دې په ټولګي کې ووايي.

٤ـ بله ډله زده کوونکي دې د نوم ډولونه وليکي او په جملو کې دې راوړي.

٥ـ په متن کې دا راغلې کلمې : وينا، افاده، لړ تر لړه،ټاکلی، څيز،نوموي، توکی، پلازمېنه، ګاونډی، مهال، غړی، تکړه، ځاروي، پت، مېړانه، اندېښنه، دودونه، بليربي، ببوزلې او برم کلمې معنا او په مناسبو جملو کې دې وکاروي.

٦ـ ددې لاندې مفردو نومونو جمع حالت وليکئ: کتاب، هلك، باغ، قلم، نوم، کلمه.

۷ـ د زده کوونکو يوه ډله دې مفرد نومونه ووايي او بله ډله دې د هغو نومونو د جمع حالت ووايي.

■ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، يوه ډله دې له بلې څخه د عام نوم او د جنس نوم پوښتنې وکړي او هغه بله ډله دې هغه نومونه ووايي.

■ لاندې څو نومونه درکړل شوي، تاسو ووایاست چې هغه کوم ډول نومونه دي:
جلال آباد، زرمينه، مالوچ، ښايست، ټولنه، هلکان، پسرلی، واوره، غنم.




## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې يو متن وليکي. د پورته يادو شوو نومونو ډولونه دې پکې وکاروي. بله ورځ دې هغه په ټولګي کې ووايي.

مال له هغې مخکې وخوره چې تا وخوري.





# جرگه

■ جرگه څه ته وايي؟

افغانستان يو لرغونی هېواد دی. اوسيدونکي يې ډېر اوږد تاريخ لري. د ستونزو د هوارولو لپاره خپل دود لري. جرگه له دې دودونو څخه يو دود دی. په ګډ ژوند کې هرو مرو لانجې پيداکيږي. ددې لانجو د حل لپاره د يو ولس سپين ږيري راټوليږي. د لانجې د له منځه وړلو لپاره د حل پر لارو خبرې اترې کوي. دې غونډې ته جرگه وايي.

■ جرگه څه ارزښت لري؟

افغانانو له ډېر پخوا څخه خپلې ستونزې په جرګو له منځه وړي دي. جرګه زموږ په هېواد کې ډېر پخوانی دود دی. جرګه يو ولسي قانون دی. خلك ورته په درنه سترګه ګوري. پرېکړې يې مني او د هغې درناوی کوي. د جرګې له لارې هر راز ستونزې هوارېږي. که دا ستونزې د دوو تنو ترمنځ وي؛ دګاونډيانو تر منځ وي؛ د قومونو تر منځ وي او يا هم د هېواد د سياسي حالاتو په اړه وي. سپين ږيري، مشران او د ولسونو منلې څېرې په يو ټغر راټولېږي. د جرګې غړي موضوع په هر اړخيز ډول څېړي، څو ورځې پرې خبرې کوي. تر اوږدو خبرو اترو وروسته داسې يوه پرېکړه کوي چې دواړو لورو ته د منلو وړ وي. کله ناکله د جرګې يو لوری د جرګې پرېکړه نه مني. ددې کار لپاره د ولس پرېکړې له پخوا څخه موجودې دي. که څوك د جرګې له پرېکړو څخه سرغړونه وکړي، نو ناغه کېږي.

ناغه يو تاوان او جريمه ده چې د جرګې له خوا ټاکل کېږي، که څوك د جرګې پرېکړه ونه مني، ناغه کېږي.

**د متن لنډيز:**

جرګه د افغانانو منلی دود دی. ډېر اوږد تاريخ لري. د هېواد او قومونو ډېرې لانجمنې موضوعګانې پرې هوارېږي. دافغانستان د جرګو ارزښت هرچاته څرګند دی. ډېرې پېچلې مسئلې، که سياسي وي يا ټولنيزې، پرې هوارې شوې دي. هرکله که د يوې موضوع د حل لاره ورکه شوې وي، نو د وخت حکومت ولس ته مخ اړوي. جرګې رابولي او د ټول ولس او هېواد په ګټه يې هواروي.



## فعالیتونه

۱ــ ټول زده کوونکي دې په ګډه په ټولګي کې یوه جرګه جوړه کړي. جرګه دې د ولس د سپین ږیرو او مشرانو تمثیل وکړي. یو تن دې خپل مشر وټاکي. د دوو زده کوونکو تر منځ دې په یوې لانجې خبرې اترې وکړي او یوې پرېکړې ته دې ورسیږي. پرېکړه دې اعلان کړي او د لانجې د دواړو خواوو رضایت دې واخلي.

۲ــ څو تنه زده کوونکي چې د جرګې په اړه معلومات لري، د ټولګي مخې ته دې راشي او د هغې په اړوند دې دوه، دوه دقیقې خبرې وکړي.

۳ــ د زده کوونکو له منځ څخه دې دولس کسیزې ډلې جوړې شي او د هرې ډلې غړی دې د بلې ډلې له یو غړي څخه د لاندې نوو کلمو د معنا پوښتنه وکړي او بیا دې د دواړو ډلو غړي په وار سره هغه په جملو کې راوړي.

ستونزې، دود، ولس، درنه، درنه سترګه، پرېکړه، منل، منلي، درناوی، ګاونډی، اړه، سپین ږیری، مشر، څېره، ټغر، څیرل، سرغړونه، ناغه.

٤ــ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي اولاندې دیالوګ دې نورو ته تمثیل کړي:

- محمود: احمده په خیر راغلې.
- احمد: خیر دې نصیب شه.
- محموده، خپه ښکارې، خیر خو به وي؟
- محمود: څه درته ووایم، په کلي کې مو جنګ شوی.

- احمد: چا جنگ کړی، ولې؟
- محمود:زما تره له نسیم سره جنګ کړی. د دېوال په سر یې لانجه کړې وه.
- احمد: لاسونه خو به یې نه وو سره اچولي؟
- محمود: ولې نه، احمده. یو بل یې وهلي وو.
- احمد: اوس یې لانجه پرې شوې، که نه؟
- محمود: نن د کلي مشران جرګه کېږي. وګورو چې څه به وکړي.
- احمد: ښه ده. جرګه به هرو مرو یوه پرېکړه وکړي.
- محمود: هو، جرګه د لانجو د پرې کولو ښه لاره ده.
- احمد: مه خپه کیږه، که خدای ﷻ کول د حل یوه لاره به ورته پیدا شي.
- محمود: مننه، احمده. کور دې ودان.
- احمد: په مخه دې ښه.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې پورته لوست په کورونو کې ولولي. د جرګې په باره کې دې پنځه جملې ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې ولولي.

په هر کار کې سلا او مشوره ښه ده.



شپاړسم لوست

# کـابل



■ کابل چیرته پروت دی؟

کابل ښکلی ښار دی. کابل د افغانستان پلازمینه (پایتخت) ده. کابل ښکلې هوا لري. په دوبي کې معتدله او په ژمي یخه وي. په کابل کې هر راز مېوې پیدا کیږي. د هېواد د ولایتونو ټول محصولات کابل ته د خرڅلاو لپاره راوړل کیږي.

■ کابل د پلازمینې په توګه څه ارزښت لري؟

■ کابل د افغانانو د څه شي نښه ده؟

د کابل ښار د افغانستان پلازمېنه (پایتخت) ده. کابل د هېواد په مرکزي برخه کې پروت دی. هوا یې په ژمي کې ډېره یخه وي. واورې او بارانونه پکې اوري. په اوړي کې یې هوا معتدله وي. بارانونه پکې نه اوري. ځکه پکې خاورې او دوړې زیاتې وي. د هېواد ولسمشر د کابل په ښار کې دفتر لري. د دولت درې واړه برخې، یعنې؛ حکومت، پارلمان او ستره محکمه په کابل کې دي. په کابل کې دولتي او شخصي پوهنتونونه او د لوړو زده کړو موسسې شته. په کابل کې د بهرنیو هېوادونو سفارتونه او سیاسي نماینده ګۍ شته. په دې ورځو کې پکې ښکلې او لوړې ماڼۍ او ودانۍ جوړې شوې او د ښار ښکلا یې نوره هم زیاته کړې ده. په کابل کې ډېر خلک اوسېږي. نفوس یې څه ناڅه څلورو ملیونو تنو ته رسېږي. د هېواد د هر ګوټ خلک دلته اوسېږي. د کابل اوسیدونکي د ورونو په څېر ژوند کوي او یو د بل درناوی کوي. په اخترونو او ملي ورځو کې ګډ جشنونه جوړوي. کابل د ملي وحدت نښه ده. کابل د ټولو افغانانو ګډ کور دی.

**د متن لنډیز:**

کابل ښکلی ښار دی. د افغانستان مرکز او پلازمېنه ده. ټولې حکومتي ودانۍ، لکه وزارتونه، لوی ریاستونه، ولسي جرګه، مشرانو جرګه، ستره محکمه او د بهرنیو هېوادونو سفارتونه په کابل کې دي. خلک یې ډېر مهربان او یو له بل سره د ورونو په څېر ژوند کوي. د هېواد لوی پوهنتون په کابل کې دی. د کابل زیات اوسېدونکي په سوداګرۍ بوخت دي. د هېواد د محصولاتو زیاته برخه کابل ته راځي او دلته خرڅېږي.



## فعالیتونه

۱ـ څلور تنه زده کوونکي دې له ټولګي څخه وتاکل شي. دوه، دوه تنه دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او لاندې خبرې اترې دې تر سره کړي. نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي. زده کوونکي دې خپل نومونه په ډیالوګ کې وکاروي، نه د دې متن نومونه.

لومړي دوه تنه:

جمیله: تورپیکۍ ستړې مه شې.

تورپیکۍ: ته ستړې مه شې، جمیلې چېرته یې چې نه ښکارې؟

جمیله: خورې نه وم، کابل ته تللې وم. پرون راغلم.

تورپیکۍ: ښه ساعت به دې تېر شوی وي. په کابل کې هوا څنګه وه، خورې؟

جمیله: یره، تورپیکۍ ډېره ښکلې هوا یې لرله. هېڅ ګرمي پکې نه وه.

تورپیکۍ: څه دې په کې ولیدل؟

جمیله: د کابل ښار اوس ډېر ښایسته شوی دی. ښې ښکلې او ښایسته ودانۍ پکې جوړې شوي. ښه ښه هوټلونه لري. ډېره ګڼه ګوڼه پکې وي.

دوه تنه نور زده کوونکي:

ګلالۍ: زموږ ولسمشر هم په کابل کې دفتر لري.

زرلښته: هو خورې، ټول وزارتونه هم په کابل کې دي. پارلمان هم په کابل کې دی.

ګلالۍ: ته پارلمان ته تللې وې؟

زرلښته: هو، موږ پارلمان ته لاړو. د ولسي جرګې او مشرانو جرګې د غونډو تالارونه مو ولیدل. هلته مو د ولس له څو تنو استازو سره ولیدل. ډېر معلومات یې راکړل.

ګلالۍ: څنګه ښه. زه مې هم له پلار سره ځم.

زرلښته: ګلالۍ خورې لاړه شه، خو فکر دې وي په ژمي کې لاړه نشې.

ګلالۍ: ښه دې وویل خورې. زما ساړه نه خوښېږي.

زرلښته: زه اوس ځم چې آزموینه لرم. بیا به دې وګورم.

ګلالۍ: سمه ده. په مخه دې ښه. د خدای ﷻ په امان.

زرلښته: د خدای په امان.

۲ـ زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي. د لومړۍ ډلې یو تن دې د دویمې ډلې له یو تن څخه د لاندې نویو کلمو یوه، یوه کلمه وپوښتي. د دویمې ډلې یو تن غړی دې هغه معنا کړي او د درېمې ډلې غړی دې هغه په جمله کې راوړي:

پلازمېنه، ښار، ژمی، واورې، باران، اوړي، ولسمشر، پوهنتون، ماڼۍ، ودانۍ، ښکلا ، ګوټ، درناوی، ګډکور، ولسي جرګه، مشرانو جرګه، ستره محکمه.

۳ـ زده کوونکي دې په خپلو منځونو کې د لاندې جملو په اړه خبرې وکړي او بیا دې د هغوی یو تن استازی هغه د نورو په وړاندې بیان کړي:

- د کابل ښار د افغانستان پلازمېنه (پایتخت) ده.
- په کابل کې د هېواد د هر ګوټ خلك اوسېږي.
- د کابل اوسیدونکي د ورونو په څېر ژوند کوي.
- په اخترونو او ملي ورځو کې ګډ جشنونه جوړوي.
- کابل د ملي وحدت نښه ده.
- کابل د ټولو افغانانو ګډ کور دی.

٤ـ پنځه تنه زده کوونکي دې په وار سره په نومړي لوست کې د (ی) ګانو بڼې پیدا کړي

او په توره تخته دې ولیکي. نور زده کوونکي دې وګوري چې هغه سمې دي که ناسمې. خبرې دې پرې وکړي.

۵ــ زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي. د لومړۍ ډلې غړي دې په وار د دویمې ډلې له غړو څخه دا لاندې پوښتنې وکړي. که ځواب سم نه و د دریمې ډلې غړي دې هغې ته سم ځواب ووایي:

۱ــ  کابل چېرته واقع دی؟

۲ــ په کابل کې څومره خلك اوسېږي؟

۳ــ د افغانستان د ولسمشر دفتر چېرته دی؟

٤ــ د څو وزارتونو نومونه واخلئ.

۵ــ د کابل هوا په اوړي او ژمي کې څنګه وي؟

٦ــ په کابل کې کومې مېوې کیږي؟

۷ــ په کابل کې په کومو ژبو ډېرې خبرې کیږي؟

۸ــ کوم سیند له کابل ښار څخه تېرېږي؟

۹ــ د دارالامان ماڼۍ چېرته پرته ده؟

۱۰ــ  میرویس میدان د کابل په کومه برخه کې پروت دی؟

٦ــ زده کوونکي دې لاندې متن ولولي او خوند دې ترې واخلي:

زه کابل یم. ستاسو کور یم. ستاسو د هېواد مرکز یم. د افغانستان پلازمېنه یم. ستاسو ټولو ګډ ښار یم. پر ما پام وکړئ. ما پاك وساتئ. پر کوڅو  او سړکونو مې خاورې خځلې مه اچوئ. که زه پاك اوسم، تاسو به پاك اوسئ. زما پر پاکۍ تاسو ښه ښکارئ. که زه پاك اوسم، تاسو

نه ناروغه کیږئ. ناروغي له ناپاکۍ پیدا کیږي. چاپېریال مې شین کړئ. بوټي، نیالګي او ګلان وکرئ. اوبه یې کړئ. د پارکونو او د سړک د غاړې په ونو پام وکړئ. ښاخونه او څانګې یې مه ماتوئ. زه ستاسو ټولو شتمني یم. یوازې د یو چا نه یم. یوازې یو چا ته مې مه پرېږدئ. آن ښاروالۍ ته مې یوازې مه پرېږدئ. که تاسو مرسته ونه کړئ، ښاروالي راته یوازې نشي رسېدای. زما پاکي ستاسو سوکالي ده. زما پاک ساتل ستاسو د ټولو دنده ده. خپله دنده سرته ورسوئ.. روغ ژوند وکړئ او سوکاله واوسئ!

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د افغانستان د ټولو ولایتونو او د هغو د مرکزونو نومونه ولیکي او بله ورځ دې په ټولګي کې ولولي.

آزادي تر پاچهیه لا تېرې کا

چې د بل ترحکم لاندې شي زندان شي

خوشحال خان خټک









# غلې، مېوې

## خبرې اترې

- غلې او مېوې څه شی دی؟

زموږ په گران هېواد افغانستان کې ډېرې غلې دانې او راز راز مېوې پیداکیږي. زیاتره غلې دانې او مېوې د اوړي په موسم کې پیدا کیږي. غنمو، جوارو او وریجو ته غلې وایي. لوبیا، چنې، نسک او نور د دانو او انگور، خټکي، هندوانې، ناک، منې او نور د مېوو په ډلې کې راځي.

- غلې دانې او مېوې زموږ بدن ته څه گټه رسوي؟
- آیا له خوراک او څښاک پرته انسان ژوندی پاتې کېدای شي؟

افغانستان کرنیز هېواد دی. ډېرې غلې دانې او مېوې پکې کرل کيږي. غنم تقريباً د هېواد په ټولو سيمو کې کرل کېږي او ښه حاصل ورکوي. په ځينو سيمو کې غنم په منې او په ځينو کې په ژمي کې کرل کېږي. جوار هم د هېواد په ټولو سيمو کې کرل کېږي. د زياتو خلکو خواړه د غنمو ډوډۍ او د جوارو سوکړک دي. نرۍ او غټې وريجې هم ډېرې خوړل کيږي. د غلو ترڅنګ لوبيا، چڼې (نخود)، نسک، مشنګ او نور هغه دانې دي چې خلک يې له خوراک سره ډېره مينه لري. سربېره پر دې افغانستان په مېوو کې خورا مشهور دی. انګور، انار، منې، ناک، اينځر، بادام، پسته، خټکي او هندوانې يې د سيمې په هېوادونو کې ډېر ښه نوم لري. انګور په کابل، لوګر، غزني، کندهار، هرات، فارياب او نورو ځايونو کې ډېر پيدا کيږي. د کندهار، فراه، سمنګانو او تګاو انار ډېر مشهور دي. خټکي د هېواد په شمالي ولايتونو او فراه کې ډېر کرل کيږي. د هلمند، دوشي او ننګرهار هندوانې ډېرې خوږې دي. ځينې تازه او وچې مېوې بهرنيو هېوادونو ته وړل کيږي.

**د متن لنډيز:**

افغانستان معتدله هوا لري. هر راز غلې دانې او مېوې پکې کېږي. په غلو کې غنم، جوار، وريجې، اوربشې او په دانو کې لوبيا، نسک، چڼې،مشنګ او په مېوو کې انګور، انار، منې، ناک،انځر، خټکي، هندوانې او نور شامل دي. غنم او جوار د هېواد په ټولو ولايتونو کې کرل کيږي. وريجې زياتره په هغو سيمو کې کرل کيږي چې ډېرې اوبه ولري. لوبيا، چڼې، نسک او مشنګ په هرځای کې نه کېږي. دا دانې د هېوادوالو عمده خواړه جوړوي.

خبرې اترې (دیالوګ): (هر زده کوونکی دې خپل خپل نوم په خبرو اترو کې راوړي.)

زلمی: زرګیه ستړې مه شې!

زرګی: ته ستړی مه شې، زلمیه څنګه یې؟

زلمی: زرګیه، څنګه دې خوا راغلې؟

زرګی: غنم مو خلاص شوي. پیسې مې راوړي، غنم اخلم.

زلمی: غنم من په څو دي، زرګیه؟

زرګی: غنم من په اتیا او جوار من په پنځه شپېته افغانۍ دي.

زلمی: ولې جوار نه اخلې، زرګیه؟

زرګی: جوار هم اخلم. زما سوکړک ډېر خوښېږي.

زلمی: زما هم سوکړک خوښېږي، خو مور یې په خوړو کې پخوو.

زرګی: هو، هغسې ښه خوندکوي.

زلمی: مور یې سهار له چای سره خورو.

زرګی: ښه ده. زه درنه لاړم. د خدای ﷻ په امان.

زلمی: ځه، الله ﷻ دې مل شه!

## دویمه مرکه:

بری: په خیر راغلې، توره! چېرته روان یې؟

تور: ته ستړی مه شې، بریه، چېرته یې چې نه ښکارې؟

بری: کلي ته تللی وم.

تور: په کلي کې دې څه کول؟

بری: غله مو خلاصه شوې وه، لږ جوار او غنم مې راوړل. څه لوبیا او نسک مې هم راوړل.

تور: توره لوبیا دې راوړله، که سره؟

بری: توره لوبیا نه لرو، سره مې راوړه. ډېره ښه لوبیا ده.

تور: ژر پخیږي، که نه؟ که ښه وي یو من ماته هم راکړه.

بری: در به یې کړم. نسک به هم درکړم.

تور: ډېره ښه ده. نسک مې هم ډېر خوښېږي. څو افغانۍ کېږي، بریه؟

بری: پیسې در څخه نه اخلم، توره. هغه زموږ په خپل پټي کې شوي دي.

تور: ډېره مننه بریه، خدای جل جلاله دې ډېر درکړي.

بری: له تا سره، خدای جل جلاله په امان.

## دریمه مرکه:

خوشحال: عمره، السلام علیکم، څنگه یې؟

عمر: وعلیکم السلام، خوشحاله، ښه یم، د الله مهرباني ده.

خوشحال: په دې کڅوړه کې څه دي، عمره؟

عمر: له تانه یې څه پټ کړم، انار مې راوړل.

خوشحال: انار؟!

عمر: هو، ډېر خواږه انار دي. دانې هم نه لري. بې دانه انار ورته وایي.

خوشحال: کیلو دې په څو واخیستل؟

عمر: ارزانه دي، کیلو په پنځه دېرش افغانۍ دي. که ډېر واخلې ارزانه یې درکوي.

خوشحال: یاره عمره، څه ښه وطن لرو، هر راز مېوې پکې شته.

عمر: هو. ته يې انګورو ته وګوره، منو ته وګوره. هندوانې او خټکي خو لا پرېږده.

خوشحال: هو، د جنت په شان وطن دی، هر څه لرو. خدای ﷻ دې سوله راولي.

عمر: امين، کاشکې! نور مو له جګرې زړه شين شوی دی.

خوشحال: الله ﷻ مهربان ذات دی. يوه ورځ به سوله راشي.

عمر: زه ځم ناوخته کېږي، چېرته کار لرم.

خوشحال: ځه، په مخه دې ښه شه!



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. د يوې ډلې يو تن غړی دې له بلې ډلې څخه لاندې پوښتنه وکړي او د هغې ډلې يو تن غړی دې په وار د هغې ځواب ووايي:

- افغانستان څه راز هېواد دی؟
- غنم د هېواد په کومو سيمو کې کرل کېږي؟
- د زياترو خلکو خواړه څه شی دي؟
- په هېواد کې د غلو ترڅنګ کومې دانې (حبوبات) کرل کېږي؟
- په افغانستان کې کومې مېوې پيدا کېږي؟
- انګور، انار او خټکي د هېوادپه کومو سيمو کې ښه حاصل ورکوي؟

۲ـ زده کوونکي دې په درېو ډلو ووېشل شي. د لومړۍ ډلې یو تن غړی دې د دویمې ډلې له یو تن غړي څخه د لاندې کلمو معنا وپوښتي او د درېمې ډلې یو تن غړی دې هغه په جمله کې راوړي.

کرنیز، غلې، کرل، سیمې، غنم، منی، ژمی، خواره، ډوډۍ، سوکړک، نرۍ وریجې، غټې وریجې، منې، ناک، انځر، خټکي.

۳ـ د زده کوونکو له ډلې څخه دې پنځه تنه په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د هېواد د مشهورو مېوو په اړه دې یوه، یوه دقیقه خبرې وکړي.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې د مور او پلار په مرسته په هېواد کې د غلو، دانو او مېوو نومونه ولیکي. که وخت یې درلود، د هغوی د کرلو ځایونه دې هم ولیکي او په بله ورځ دې هغه په ټولګي کې نورو ته ووایي.

یوازې هیله شرط نه دی، د هغې د لاسته راوړنې لپاره هڅه اوهاند هم شرط دی.

هانس کرستین اندرسن





# پېژندګلوي

## خبرې اترې



■ پېژندګلوي څه ته وايي؟

انسانان د يوې ټولنې غړي دي. له يو بل سره پېژندګلوي د انسان په ژوند کې اسانې راولي. موږ يوه ورځ له يو چا سره په يوځای کې مخامخ کېږو. که په بله ورځ هماغه شخص وګورو، ستړې مه شې ورسره کوو. که درېم ځل يې وګورو، ښه روغبړ ورسره کوو او پېژندګلوي ورسره پيداکوو. که کتنه دوام ومومي نو سره دوستان کېږو.

■ دوستي او پېژندګلوي څه ګټه لري؟

انسان یو ټولنیز مخلوق دی. په ټولنې کې ژوند کوي. باید یو له بل سره وپېژني. د یو بل د نوم، د استوګنې د ځای، کار او شخصي ژوند په څرنګوالي باندې پوهېدلو ته پېژندګلوي وايي. زموږ د کور شاوخوا خلک اوسېږي. هغوی ته ګاونډیان وایو. هغوی زموږ په غم اوښادۍ کې برخه اخلي. باید له هغوی سره وپېژنو. هر وخت ورسره مرسته وکړو. زموږ په ولس کې ډېرې کورنۍ شته. ډېر خلک پکې اوسېږي. د یو ټولنیز مخلوق په توګه موږ باید له هغوی سره وپېژنو. په ښوونځي کې، په ټولګي کې اوهمدا راز په نورو ځایونو کې له خلکو سره آشنایي د سړي اهمیت زیاتوي.

**د متن لنډیز:**

انسانان په ټولنې کې اوسېږي. د خپلو ورځنیو کارونو او ژوند د پرمخ وړلو لپاره یو له بل سره پېژندګلوۍ او دوستۍ ته اړ دي. په یوې ټولنې کې هیڅوک نشي کولای ټول کارونه په یوازې سر، سر ته ورسوي. له دې امله موږ د خپل ټولنیز درېځ له مخې یو له بل سره پېژندګلوۍ ته اړ یو. پېژندګلوي د انسان طبیعي خاصیت دی.

## مرکې:

### لومړۍ مرکه:

یو زده کوونکی: سلام. زما نوم رحمت دی. ستا نوم څه دی؟

بل زده کوونکی: سلام. زما نوم حبیب دی. د فاریاب اوسیدونکی یم.

- ډېر ښه، حبیب جانه د فاریاب د کوم ځای یې؟
- د فاریاب د شیرین تګاب د ولسوالۍ یم. ته د کوم ځای یې، رحمته؟
- زه د کوهدامن یم.
- حبیب جانه، په کوم ښوونځي کې یې؟
- رحمت جانه، زه د کابل په میرویس لیسه کې یم. پلار مې په ښاروالۍ کې مدیر دی. زموږ کورنۍ هم دلته په کابل کې اوسېږي. د ژمي په رخصتیو کې کله کله

شیرین تګاب ته په میلمستیا ځو.
- ودې نه ویل حبیبه چې په کوم ښوونځي او په څویم ټولګي کې یې؟
- زه په محمود هوتکي ښوونځي کې یم. سږکال اووم ټولګي ته بریالی شوم.
- ښوونځی مو له کور څخه څومره لیرې دی؟
- مور په جمال مېنه کې اوسېږو. ښوونځي ته نژدې یو. ته په کوم ټولګي کې یې، حبیب جانه؟
- زه هم په اووم ټولګي کې یم. د ټولګي اول نومره هم یم.
- شاباس. لایق زده کوونکی یې!
- کور دې ودان رحمته، له پېژندګلوۍ دې خوښ شوم.
- زه هم ستا له پېژندګلوۍ خوښ شوم. هیله ده چې بیا سره وګورو.
- هو که خدای ﷻ کول، بیا به وګورو. اوس اندېوالان شو. په مخه دې ښه رحمت جانه.
- ستا دې هم په مخه ښه وي حبیب جانه.

**دویمه مرکه:**

ملالۍ: پرښتې، ستړې مه شې
پرښته: په خیر اوسې ملالۍ. څنګه یې؟
ملالۍ: مننه، ښه یم. ته څنګه یې؟
پرښته: زه هم ښه یم.
ملالۍ: پرښتې، دا ښځه څوک ده؟ نوې راته ښکاري.
پرښته: هغه زموږ د فزیک ښوونکې ده. نوې راغلې، ډېره ښه ښځه ده.
ملالۍ: پرښتې، ته هغه پېژنې؟
پرښته: هو، هغه زموږ ګاونډۍ ده. ډېره ښه کورنۍ ده. پلار او ورونه یې ډېر ښه خلک دي. د هر چا په مړي ژوندي کې برخه اخلي.
ملالۍ: ودې نه ویل چې د کوم ځای فارغه ده؟
پرښته: هغه د ننګرهار له پوهنتون څخه فارغه شوې ده. نورې لوړې زده کړې یې په لندن کې سرته رسولي دي. په فزیک کې پوره استاده ده.
ملالۍ: کور دې ودان، پرښتې. ښه شو چې ومې پېژانده.

**دريمه مرکه**:

شریف: سهار دې په خیر، توابه!

تواب: خیردې نصیب شه، شریفه. ستړې مه شې.

شریف: خوار مه شې.

تواب: نن زموږ ټولګي ته نوی ښوونکی راغلی و.

شریف: څه نومېده، توابه؟

تواب: نوم يې محمد سليم و. د غور اوسيدونکی دی.

ځان يې راوپېژانده. لس دولس کاله معلمي يې کړې ده.

ډېر ښه سړی ښکاري.

شریف: تاسو ځانونه ور و نه پېژندل؟

تواب: ولې نه، هر زده کوونکی په وار ودرېد. ویې ویل: زما نوم .... دی. د پلار نوم مې .... دی. د ..... ځای اوسیدونکی یم. عمر مې .... کاله دی (... کلن یم). له واليبال سره مينه لرم...

شریف: تا څه ورته وويل، توابه؟

تواب: زه ودرېدم. ومې ويل: زما نوم تواب دی. د پلار نوم مې احمد دی. اصلا د نورستان اوسېدونکی يم. خو ډېر کلونه کېږي چې په کابل کې اوسېږم. سږکال څوارلس کلن شوم. مورنۍ ژبه مې نورستاني ده. په پښتو هم ښې خبرې کوم. پلار مې ښوونکی دی. د قاري عبدالله په ښوونځي کې د تاریخ استاذ دی. مورمې د ښځو چارو په وزارت کې مدیره ده. موږ درې ورونه یو. مشر ورور مې ګنډونکی (خياط) دی او کشر ورور مې په ښوونځي کې دی.یوه خور لرم. هغه کوچنۍ ده. نوم يې شمله ده. د هغې کارتوني فلمونه ډېر خوښېږي.

شریف: افرين، ځان دې ډېر ښه معرفي کړی دی.

تواب: هو، همدې ته پېژندګلوي وايي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپل کور کې د مطالعې لپاره د کور د غړو په مرسته يو کتاب يا مجله يا کومه ورځپاڼه وټاکي او په بله ورځ دې نورو زده کوونکو ته د هغه د مطالعې د ګټو په اړه خبرې وکړي.



نولسم لوست

# مېرمن الايي

- آیا د مېرمن الايي نوم مو اورېدلی دی؟

په تېرو لوستونو کې مو د هېواد د نومياليو په اړه معلومات ترلاسه کړل. زموږ د هېواد په ټولو سيمو کې داسې وتلې او نومیالۍ مېرمنې او نوميالي ښاغلي وو او شته چې نومونه يې په زرينو کرښو ليکل شوي او ياد يې د هر ښځينه او نارينه افغان په زړه کې تازه دی. د نومياليو مېرمنو په لړ کې دلته د مېرمن الايي د ژوند د څرنګوالي په اړه لنډ معلومات لولو.

- د هېواد د نومياليو د نومونو ياد او د هغوی په ژوند ليک باندې پوهېدل موږ ته څه ګټه لري؟

افغانستان د نومیالیو مېرمنو او مېړونو ټاټوبی دی. ډېر ښځینه او نارینه پوهان، لیکوال، شاعران، ملي مشران او په هېواد مینې ځېرې پکې تېرې شوي. د هېواد هره دره او لاره د هغوی د کارنامو شاهدي ورکوي. ددې نومیالیو په لړ کې یوه هم مېرمن الایي ده. الایي د بایزید روښان د زوی، جلال الدین لور وه. نوموړې د شیخ عمر د زوی، احداد مېرمن وه. زده کړې یې له خپل پلار څخه کړې وې. د علم پوهې، فضیلت او غوره اخلاقو خاونده وه. الایي د روښانیانو د ملي مبارزو د لارې پیروه وه. د هغه مهال له مغولي گورگاني حکومت سره د روښانیانو د مبارزو په لړ کې یې فعاله ونډه اخیستې وه. په ۱۰۵۳ هجري قمري کې د الایي مېړه، احداد شهید شو. هندي مغول د خیبر له لارې کابل ته روان وو. مېرمن الایي اپریدي او اورکزي قومونه راټول او پر گورگاني لښکرو یې برید وکړ. سخته مرگ ژوبله او ماته یې ورواړوله. د مېرمن الایي د مړینې نېټه څرگنده نه ده. له خپل وصیت سره سم یې مړی تېرا ته یوړل شو او د خپل مېړه، احداد تر څنگ خاورو ته وسپارل شوه. د مېرمن الایي د علمي شخصیت او د ملي مبارزو د وياړلو کارنامو د لمانځنې او درناوي له امله د جلال آباد په ښار کې د نجونو یوه لېسه یې په نامه نومول شوې ده.

**د متن لنډیز:**

افغاني مېرمنو د خپلو افغاني نارینه وو په څېر تلپاتې نومونه گټلي دي. هغوی د علم، پوهې، مشرۍ او نورو ډگرونو اتلانې دي. نازو انا، زرغونه انا، عینو، عایشه درانۍ او په لسگونو داسې نورې مېرمنې د افغانانو د سر تاجونه دي. دلته مو ددې وياړلو مېرمنو په لړ کې مېرمن الایي په ډېر لنډ ډول وپېژندله. په راتلونکو ټولگیو کې به نورې وياړلې مېرمنې هم وپېژنو.



## فعالیتونه

۱ــ پنځه تنه زده کوونکي دې د وار له مخې د ټولګي مخې ته راشي او پورته لوست دې د کتاب له مخې ولولي.

۲ــ درې تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه او یا د ښوونکي په خوښه د ټولګي مخې ته راشي او  مېرمن الایي دې په لنډ ډول نورو ته ورو پېژني.

۳ــ  دوه، دوه زده کوونکي دې په درېو جوړو کې د ټولګي مخې ته راشي او د مخکنيو مرکو په څېر دې لنډې، لنډې مرکې وکړي.

٤ــ لاندې نوې کلمې معنا او په جملو کې يې راوړئ:

تېر، نومیالیو، اړه، وتلې، مېرمن، ښاغلی، زرین، لړ، ټاټوبی، مین، څېره، غوره، ونډه، برید، ژوبله،  ماته، ویاړلي، لمانځل، درناوی، نومول، تلپاتې، اتل

زده کوونکي دې دا لاندې ترانه ولولي او خوند دې  ترې واخلي:

# ترانه

لکــه نســیم د بــاغ ګلونــو تــه پیغـام دی زمــوږ
هــدف د کار او د خدمــت وطــن او قــام دی زموږ
مــوږه افغــان تــه یــو قــوي ملــي وحدت جــوړوو
د تفرقــې د امتیــاز پــه کــور قیامــت جــوړوو
ورانــې ویجــاړې د وطــن پــه خپل همــت جوړوو
عــدل انصاف او مســاوات روح د نظــام دی زموږ
لکــه نســیم د بــاغ ګلونــو تــه پیغـام دی زمــوږ
مــوږه تعمیــم د معارف پــه خپل وطن کــې غواړو

نـوی آهنګ د نوي ژوند پـه خپل چمن کې غواړو
دښـمن د حـق او حریت سـر په کفن کـې غواړو
خدمت د قام ته چې ولاړ وي پرې سـلام دی زموږ
لکـه نسـیم د بـاغ ګلونـو تـه پیغـام دی زمـوږ
وطـن نـه بـد بـد رواجونـه رسـومات ورکـوو
رنځونـه، لـوږې، بـې علمـي او خرافـات ورکوو
د کار لـه منـځ منـځ نه بـې ځایه سـکنات ورکوو
بنـا پـر حسـن اعتمـاد بانـدې مـرام دی زمـوږ
لکـه نسـیم د بـاغ ګلونـو تـه پیغـام دی زمـوږ
ظلـم، رشـوت، تملـق، دروغ او خیانـت نـه منو
غـواړو پـه زړه کـې درد او رحم، قسـاوت نه منو
سـره همـدرد یو، بـې دردي په رسـمیت نـه منو
مـلا عالـم، مخلص خـادم تـه احتـرام دی زموږ
لکـه نسـیم د بـاغ ګلونو تـه پیغـام دی زمـوږ ...

محمد موسیٰ شفیق

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د خپلې خوښې موضوع کې یوه مرکه ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې تمثیل کړي.

له یوه لاسه ټک نه خېژي.



شلم لوست

# صفت او ډولونه يې



- آيا تاسو د صفت په اړه معلومات لرئ؟

دمخه مو په څلورم لوست کې په پښتو کې د (ی ګانو) ډولونه وپېژندل.  دلته صفت او ډولونه يې لولو.

- د ژبې د ګرامر زده کړه څه ګټه لري؟

توریالی په کندوز کې اوسېږي. هغه ډېر تکړه زده کوونکی دی. توریالی یو ورور او دوه خویندې لري. ورور یې کوچنی دی. څلور کلن دی. خویندې یې مشرانې دي. یوه یې نتکۍ او بله یې هوسۍ نومیږي. د نتکۍ سور رنګ خوښېږي او د هوسۍ شین. یوه ورځ توریالی بازار ته تللی و. هلته یې سرې مڼې ولېدې. مڼې یې واخیستې. ویې خوړې. ډېرې خوږې وې. وروسته د ګلانو خرڅولو هټۍ ته ورغی. مشرې خور، نتکۍ ته یې سره ګلان واخیستل. هوسۍ ته یې شین ټیکری واخیست. ورور، حبیب ته یې د لوبو سامان واخیست. هر رنګ په کې و. شین، سور، تور، بانجاني، ژیړ، آسماني او ځیګري رنګونه یې لرل. خویندې یې ډېرې خوشاله شوې او مننه یې ترې وکړه. حبیب د لوبو د سامان په لیدو په ټوپونو شو. د لوبو سامان یې د توریالي له لاسه وتښتاوه. توریالی د خویندو او ورور په خوشالۍ ډېر خوښ شو.

**د متن لنډیز:**

په پورته لوست کې داسې کلمې راغلي دي چې د نوم څرنګوالی ښیي. لکه تکړه، کوچنی، خوښ، شین، سور، خوږې او نور. په دې توګه ویلای شو، صفت یوه خپلواکه کلمه ده چې د یو نوم یا یو شي څرنګوالی ښیي. لکه: په متن کې، خوږې مڼې، تکړه زده کوونکی، کوچنی ورور، خوښ، سره ګلان، شنې جامې او نور. صفت دوه ډولونه لري. یو یې ساده او بل یې مرکب صفت دی.

لاندې جملې ولولئ:

- تور ګلان چا نه دي لیدلي.
- دا زده کوونکی تکړه دی.
- پوخ خټکی خوږ وي.

په پورته جملو کې تور، تکړه او پوخ ساده صفتونه دي. ساده صفت هغه صفت ته وايي چې یوه مفرده کلمه وي.

لاندې جملو ته ځير شئ:

- ناپوه هلک چاته ګران نه وي.
- ختګر په کلاکې ختې کوي.
- توريالی زړور هلک دی.

په پورته جملو کې ناپوه، ختګر او توريالی مرکب صفتونه دي. يعنې ناپوه له (نا) او (پوه)، ختګر له (خته) او (ګر) او توريالی له (تور) او (يالي) څخه جوړ (ترکيب) شوي دي. په دې توګه ويلای شو، مرکب صفتونه هغو صفتونو ته وايي چې له دوو توکو څخه جوړ شوي وي.



## فعاليتونه

۱ـ دوه تنه زده کوونکي دې لاندې مرکه تر سره کړي:

حميرا: ولولې خورې ستړې مه شې!

ولوله: خير يوسې، حميرا خورې. څنګه يې؟

حميرا: ښه يم خورې. ته څنګه يې؟

ولوله: زه هم ښه يم، مننه.

حميرا: چېرته تللې وې؟

ولوله: باغ ته تللې وم. ګلان مې په کار وو.

حميرا: ګلان څه کوې، ولولې؟

ولوله: سبا د ښوونکي ورځ ده. ښوونکي ته يې وړم.

حميرا: کوم رنګونه دې شکولي؟ ته يې راوښيه.

ولوله: سپين او سره ګلان ډېر ښايسته دي. يو نيم ارغواني هم پکې شته.

حميرا: هو، دا خو ډېر ښايسته رنګونه دي.

ولوله: ګلان ښه سوغات دی، حميرا جانې.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي. يو تن دې په څو جملو کې د ساده او بل تن دې د مرکب صفت بېلګې وړاندې کړي.

۳ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي. يو تن دې نوم وايي او بل تن دې د هغې څرنګوالی په صفت کې بيان کړي. لکه:

- زده کوونکی
- دا زده کوونکی ډېر تکړه دی.
- خوږ
- دا انار خوږ دی.

٤ـ زده کوونکي دې په لاندې متن کې ساده او مرکب صفتونه بېل کړي:

((احمد تکړه هلک دی. د هغه سپين رنګ خوښېږي. افغانان توريالی ولس دی. هغه هلک ناپوه دی، په لوست نه پوهېږي. انګور خواږه دي، خو انار تروه دي. ختګر په ختو نه پوهېږي.))

٥ـ د متن لاندې کلمې معنا او په جملو کې يې راوړئ:

اوسيدل، تکړه، خوينديې، کوچنی،څلور کلن، مشر، مشران، خوږ،هتی، مننه، ټوپونه، تبنتول، څرنګوالی، ختګر، کلا، ختې.




## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په خپلو کورونو کې يومتن وليکي. ساده او مرکب صفتونه دې پکې راولي او په بله ورځ دې هغه په ټولګي کې ولولي. هڅه دې وکړي چې زيات شمېر صفتونه پکې وکارول شي.



يوويشتم لوست

# كتاب
# ښه ملګرى




■ تاسو له درسي كتابونو پرته نور كتابونه پېژنئ؟

كتاب د انسان ډېر ښه ملګرى دى. په كتابونو كې ډېر ښه ښه شيان شته. دا شيان په لوستلو تر لاسه كيږي. هر كتاب په يو وار لوستلو ارزي. له كتاب سره مينه له پوهې سره مينه ده. په پوهه انسان لوړو پوړيو (مدارجو) ته رسيږي.

■ د كتاب لوستل څه ګټې لري؟

کتاب ښه ملګری دی. تل له انسان سره وي. کتاب داسې ملګری دی چې له پوښتنو څخه نه ډارېږي او نه ستړی کېږي. که یو دوست یا ملګری ولرئ، نو باید تل یې طبعه وساتئ، خو کتاب داسې دوست دی چې هر وخت وغواړئ خبرې درسره کوي او چې بند یې کړئ، چوپ کېږي. کتاب داسې سخي دوست دی چې خپل ټول شته تاسو ته په مخ کې ږدي او هیڅ بدل درڅخه نه غواړي. کتاب داسې دوست دی چې هیڅ تمه درڅخه نه کوي. په شپه او ورځ، په غم او خپګان، په تیاره او رڼا کې درسره اوسېږي. که ترې وغواړې، مرسته درسره کوي او تا یوازې نه پرېږدي. راځئ کتابونه ولولو؛ خوند ترې واخلو؛ خپل وزګار وخت پرې تېر کړو او پوهه ورڅخه زده کړو. د کتاب د لیکوال له تجربو او پوهې څخه ګټه واخلو او د راتلونکي ژوند د لارې ډیوه یې کړو.

## کتاب وايي

زه ستاسو ملګری یم. یوازې ستاسو نه، بلکې د هرچا ملګری یم. ماته وګورئ، ښومره ښه ښکارم. پاڼې مې پاکې دي. وزرونه مې پوښل شوي دي. ګرد او خاورې راباندې پرتې نه دي. څکه تل ستاسو په لاسونو کې یم. زه ستاسو خبرې نه اورم، خو تاسو زما خبرې اورېدلای شئ. زه تاسو ته ښه لار درښیم. سمې لارې ته مو رابولم. ډېر ښه، ښه شیان راکې شته. ښه پوهه راکې شته. دا ټول مې ستاسو په مخ کې ایښې دي. ما ولولئ. ما مطالعه کړئ. زما په پندونو ځانونه پوه کړئ. زما شعرونه ولولئ. زما کیسې واورئ. خپل د یوازیتوب وخت له ما سره تېر کړئ. زه له تاسو سره خوښ یم، نه ستړی کېږم. د نړۍ له پټو شیانو ځانونه خبر کړئ. زما په بدن کې سره زر پراته دي. سپین زر پراته دي. ډېر ګران بیه شیان پراته دي. هغه ستاسو دي. ما ولولئ، ما ولولئ، چې هغه ټول ستاسو شي.

**د متن لنډیز:**

درسي کتابونه د زده کړې کتابونه دي. د ژبې کتابونه موږ ته ژبه زده کوي او د لیک او لوست لار راښیي. د ریاضي کتابونه موږ ته حساب را زده کوي، تاریخ مو له تېرو پېښو او واقعیتونو خبروي او همداسې نور کتابونه درواخله. له درسي کتابونو پرته نور کتابونه زموږ پوهه او تجربه پراخوي او له موږ سره د ژوند د ستونزو په حل کې مرسته کوي. له کتابونو سره ملګرتیا سړي ته د ښه ژوند لار ښیي. راځئ کتابونه ولولو او خپله پوهه پرې زیاته کړو.



## فعالیتونه

۱ــ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د لاندې بېلګې په څېر دې په خپل منځ کې مرکه وکړي:

- ګلاب: ګرانه ستړی مه شې!
- ګران: روغ اوسې ګلابه.
- ګلاب: ګرانه په لاس کې دې څه شی دی؟
- ګران: کتاب دی. د رحمن بابا د شعرونو دیوان دی.
- ګلاب: دا ښه کتاب دی. خوندور شعرونه لري.
- ګران: هو، ډېر په زړه پورې شعرونه دي.

۲ــ څو تنه زده کوونکي دې د وار له مخې د ټولګي مخې ته راشي او د کتاب د ارزښت په اړه دې یوه، یوه دقیقه خبرې وکړي.

۳ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه لاندې پوښتنې وکړي او زده کوونکي دې په وار سره ځواب ورکړي:

- دا څه شی دی؟
- دا کتاب څو پاڼې لري؟
- تاسو په اووم ټولګي کې څو کتابونه لولئ؟
- د کتاب لوست ستاسو د کتاب په څویم مخ کې دی؟
- ستاسو کوم کتاب ډېر خوښېږي؟
- مور ولې کتاب لولو؟
- تاسو د کیسو کوم کتاب لوستی دی؟

٤ـ څو تنه زده کونکي دې لاندې کلمې معنا او په جملو کې دې راوړي:
پېژندل، ملګری، لوستل، وار، پوهه، لوړ، پوړی، ډاربدل، ستړی، تمه، رڼا، خوند، وزګار، ډیوه، پیښه، ستونزه، پراخه.

## کورنی دنده

زده کوونکي دې د کتاب د ارزښت په اړه په خپلوکورونو کې پنځه، پنځه کرښې ولیکي او په بله ورځ دې په ټولګي کې د نوروتر مخه ولولي.

په نړۍ کې داسې خوند نشته چې د کتاب د مطالعې له خوند سره برابر وي. (لیو تولستوی)





# محمد گل خان مومند



■ آیا تاسو د محمد گل خان مومند نوم اورېدلی دی؟

زموږ په گران هېواد افغانستان کې زیات شمېر نومیالي او پوهان تېر شوي دي. هغوی د هېواد افتخار دی. هر افغان حق لري چې په هغوی وویاړي. زده کوونکي باید د هغوی له خېرو سره آشنا شي. د هغوی له ژوند سره بلد شي او د هغوی پر پل باندې پل کښېږدي. ددې نومیالیو په لړ کې یو هم محمد گل خان مومند دی. تاسو دلته د هغه له ژوند سره په لنډه ډول آشنا کیږئ.

■ د هېواد له نومیالیو او د هغوی له ژوند سره آشنا کېدل موږ ته څه گټه لري؟

زمونږ په ګران هېواد کې زيات شمېر پوهان، ليکوال، شاعران، ملي مشران اونوميالي څېرې تېرې شوې دي. د هغوی له ډلې څخه يو هم خدای بښلی وزير محمد ګل خان مومند دی. نوموړی په يو زرو دوه سوه دري شپېته (۱۲۶۳) شمسي کال کې د کابل ښار د اندرابيو په کوڅه کې زېږېدلی دی. له لومړنيو زده کړو وروسته په حربي ښوونځي کې شامل شو. له زده کړو وروسته يې پوځي دنده تر لاسه کړه. په بېلابېلو دولتي څوکيو کې يې کار وکړ. په پای کې د کورنيو چارو د وزير په توګه وټاکل شو. محمد ګل خان مومند په هېواد مين او خادم شخصيت و. هغه د والي په توګه د هېواد په مختلفو ولايتونو کې د وروږګلوی په بشپړ ملي احساس خلکو ته خدمت کړی دی. په دولتي دندو سربېره يې ادبي او فرهنګي کارونه هم سر ته رسولي دي. پښتو سيند، پښتو ليار، پښتني روزنه، پښتونواله او نورو په نومونو يې يو لړ کتابونه ليکلي دي. وزير محمد ګل خان مومند په يو زرو درې سوه او درې څلوېښت (۱۳۴۳) کال د زمري (اسد) د مياشتې په اووه ويشتمه (۲۷) نېټه په کابل کې وفات او په شهدای صالحينو کې خاورو ته وسپارل شو. اروا دې ښاده وي.

## د متن لنډيز

په دې لوست کې مو د هېواد يوه علمي، ادبي اوفرهنګي څېره اروا ښاد وزير محمد ګل خان مومند وپېژانده. محمد ګل خان مومند يوه پېژندل شوې ادبي، فرهنګي او سياسي څېره وه. د هېواد په مختلفو دولتي څوکيو کې يې په پوره صداقت او رښتينولی دنده سرته رسولې ده. شاعر او ليکوال، محمد ګل خان مومند يو شمېر کتابونه هم ليکلي چې د خلکويه زړونو کې د هغه نوم ياد ساتي.



## فعالیتونه

۱ـ د زده کوونکو له ډلې څخه دې څو تنه لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

- د مومند پوره نوم څه شی دی؟
- مومند چېرته زېږېدلی دی؟
- خپلې زده کړې یې چېرته سرته رسولې دي؟
- وروستی دنده یې څه شی وه؟
- مومند کله وفات شوی دی؟
- چېرته خاورو ته سپارل شوی؟
- مومند کوم کتابونه لیکلي دي؟
- مومند په مور او تاسو څه حق لري؟

۲ـ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ارواښاد مومند د ژوند په اړه دې یوه، یوه دقیقه خبرې وکړي.

۳ـ دوه، دوه تنه زده کوونکي دې په پنځو جوړو کې د ټولګي مخې ته راشي او یو له بل څخه دې د وزیر محمدګل خان مومند په اړه پوښتنې وکړي او ځوابونه دې واوري.

٤ـ لاندې نوې کلمې معنا او په جملو کې یې وکاروئ:

اورېدل، نومیالي، تېر، ویاړل، پل، لر، خدای بښلی، کوڅه، زېږېدل، پوځي، دنده، مین، ورورګلوي، بشپړ، ارواښاد، رښتینولي.

٥ـ زده کوونکي دې په پورته لوست کې خاص او عام نومونه ولیکي او نورو ټولګیوالو ته دې واوروي.

٦ـ دوه تنه زده کوونکي دې لاندې خبرې اترې سرته ورسوي.

لومړی: زرغونه ستړې مه شې!

دویم: په خیر اوسې، متینه.

لومړی: دا هلک څوک دی؟

دویم: دا مې وراره، نسيم دی.

لومړی: ښه نسيم جانه څنګه يې؟

دویم: ښه يم، خير دې نصيب شه، تره.

لومړی: دا کوچنی هلك او نجلۍ څوك دي؟

دویم: دا هلك، ګلاب دی. د نسيم خوريی دی او هغه نجلۍ پلوشه ده، د ګلاب خور او د نسيم خورزه ده.

لومړی: ښه دی چې ومې پېژندل. چېرته ځئ؟

دویم: ځو، ګلاب او پلوشه په ښوونځي کې شاملوو.

لومړی: ښه! ځئ په مخه مو ښه.

دویم: مننه، متينه، د خدای ﷻ په امان

**نژدې خپلوان:**

ورور (وراره، وربره)، خور (خوريی، خورزه)، تره (د تره زوی، د تره لور)، ماما (د ماما زوی، د ماما لور)، ترور (تروږزی، تروږزې)، مور، نيا، پلار، نيکه، نږور، خواښې.

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په پورته لوست کې هغه کلمې وليکي چې په پای کې يې اوږده (ې) راغلې ده او په بله ورځ دې د ټولګي په وړاندې ولولي.

**ميړونه مري، خو نومونه يې پاتې کيږي.**





# املا څه ته وايي؟




- تاسو لیکل څنګه زده کړي دي؟

تاسو په مخکنیو ټولګیو کې لیکل زده کړي دي. د کلمو سمو لیکلو ته املا وايي. که لیکنه سمه نه وي، څوک یې نه پوهېږي. هرڅومره چې زیات ولیکو، هغومره سمه لیکنه کولای شو.

- ولې د املا زده کړې ته اړتیا لرو؟

موږ ژبه زده کوو چې خبرې پرې وکړو. ژبه زده کوو چې خپل فکر نورو ته بيان کړو، خو د ژبې زده کړه يوازې خبرې کول نه دي، ليکل هم دي. ځکه که څوک راسره مخامخ وي، په خبرو ورسره مفاهمه کولای شو، خو که يو څوک لېرې وي، موږ له تيليفون پرته نشو کولای په خبرو يې پوه کړو. بايد ليک ورواستوو. د ليک استول يا د يو ليک لوستل، د ليک زده کړې ته اړتيا لري. له غلطۍ پرته سمو ليکنو ته املا وايي. املا په ډېرو ليکلو ښه کېږي. هره کلمه بايد څو، څو واره وليکو، په جملو کې د کلمو ځای وپېژنو او په سم ليک يې وليکو. د خبرو ژبه کله کله د ليک له ژبې سره توپير لري. په خبرو کې خلک زياتره د خپلو خپلو سيمو لهجې کاروي، خو ليک معياري او واحده بڼه لري. ليک ادبي بڼه لري. خلک وايي ((څی کی)) خو معياري ليکنې بڼه يې داسې ده: ((څه يې کوې؟)) او داسې نور.

د کلمو په سمو ليکلو کې فکر وکړو. بايد د کلمو توري يو له بله توپير کړو. په پښتو کې د (ث، ح، هـ، س، ص، د، ض، ع، ښ او نورو تورو) د کارولو په وخت کې هوښيار اوسو. د هغو کلمو ليکلو ته بايد ښه پام وکړو چې دا توري پکې راځي. وګورئ: سابه، ثريا، ثابت، خوشحال، هلکك، صابر، ضرر، عبدل په (ثابه، خوشهال، الکك، سريا، سابت، سابر، زرر، اودل ...) ونه ليکل شي. د هرې کلمې د ليکلو سمه بڼه مو بايد زده وي.

**د متن لنډيز:**

د خپل فکر د انتقال لپاره ليک ته اړتيا لرو. ددې لپاره چې لوستونکي مو په ليک سم پوه شي او زموږ پيغام په سمه توګه واخلي، بايد سم ليکل زده کړو. د ليک سمې زده کړې ته املا وايي. ليک او لوست د نننی انسان ډېره مهمه اړتيا ده. بايد سم ليک او لوست مو زده وي.

زده کوونکي دې لاندې رقعه څو، څو واره ولولي. د هغې سم لوستل او ليکل دې زده کړي:

نسرين د عمر خان لور

د زرغونې لېسې د اووم ټولګي زده کوونکې

نېټه: ۱۴ / ۶ / ۱۳۸۸

د زرغونې لېسې آغلې مديره صاحب،

د سختې ناروغۍ له امله نن ښوونځي ته نشم درتلای. تاسو ته مې خبر درکړ. هيله ده چې ناسوبه نشم.

په درناوي

((**يادښت**: د زرغونې پر ځای دې زده کوونکي د خپل ښوونځي نوم وليکي. د هلکانو په ښوونځيوکې دې د نارينه مدير لپاره ښاغلی وليکي. د نسرين په ځای دې هر زده کوونکی خپل او د پلار نوم او ټولګی وليکي. د ضرورت د رقعې لپاره دې د سختې ناروغۍ په ځای (ضرورت) وليکي.))

## فعاليتونه

۱ـ څو تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د املا د اړتيا په اړه يوه، يوه دقيقه خبرې وکړي.

۲ـ درې تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د ناروغۍ په اړه رقعه دې له ځانه په توره تخته وليکي.

۳ـ دوه، دوه تنه دې په درېو ډلو کې د ټولګي مخې ته راشي. لومړی دې ځان وپېژني او بیا دې د املا د اړتیا او سم لیک په اړه له یو بل سره مرکه وکړي.

٤ـ لاندې نوې کلمې معنا او په جملو کې یې راوړئ:

لیکل، اړتیا، پرته، پوه، استول، لوستل، اخیستل، وار، توپیر، ولس، بڼه، بېلګه، پیغام، ننني، ناروغي، اړه.

٥ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې په پورته متن کې د (ی ګانو) بېلا بېل ډولونه نورو زده کوونکو ته څرګند کړي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې خپل ښوونځي ته د ناروغۍ او ضرورت رقعې تمرین کړي، په ښکلي خط دې ولیکي او په بله ورځ دې هغه ټولګي ته راوړي.

ابن سینا وایي: د ژوند په بهیر کې دومره وپوهېدو چې په هېڅ نه یو پوهېدلي.



ځلورويشتم لوست

# روزنيز شعر

زموږ ماشومان او تنکي ځوانان د زده کړې تر څنګ روزنې ته اړتیا لري. دا روزنه هم بدني ده او هم اخلاقي. وايي، زده کړه ښه ده، خو روزنه تر هغې غوره ده. په نيکو اخلاقو د ځان سمبالول راتلونکي ښه ژوند ته چمتووالی دی. راځئ ځانونه په نيکو اخلاقو وروزو.

- ښه روزنه د نېکمرغه ژوند لپاره څومره ارزښت لري؟

دلته مو تاسو ته یو روزنیز شعر غوره کړی دی. هغه ولولئ او ځان پرې پوه کړئ:

چې مدام د بل وعیب وته نظر کړې
خدای له خپله عیبه ولې بې خبر کړې

که یوه جو دانه عیب وینې په بل کې
هغه یو جو دانه عیب به یې لوی غر کړې

که دې خپله گناه لویه لکه غر وي
په حیله حیله به غر د مچ وزر کړې

که خوک تله د انصاف په لاس کې درکا
خپل ټټو او د بل آس به برابر کړې

تو لعنت دې په دا هسې منصفی شه
چې له حقه و باطل وته گذر کړې

تا ته رب د ملایکو مقام درکړ
ته دا خپل صورت په خپله گاو وخر کړې

په نعمت یې شکرانه کولای نه شې
چې زحمت درباندې درشي شور وشر کړې

که دې یو وېښته د ځان دپاسه کوږ شي
ځان هغه ساعت له خدایه مرور کړې

د ځوانی عمر دې تېر کړ په غفلت کې
په پیری کې به څه زېرمه د محشر کړې

وېدخواه وته خوک نېک نصیحت نه کړي
رحمان ستا په غم شریک دی که باور کړې

**یادونه**: رحمان بابا د پښتو ژبې ډېر لوی شاعر تېر شوی دی. د شعرونو دېوان ترې راپاتې دی. شعرونه یې روزنیز او تصوفي رنگ لري. رحمان بابا په پېښور کې خاورو ته سپارل شوی دی. په کابل کې یې یوه لېسه په نامه نومول شوې ده.

د پورته شعر مفهوم په لاندې ساده ټکو کې ولولئ:

هرڅوک نیمګړی دی. یو عیب لري. خپل عیب چاته نه ښکاري. وایي: "خپل عیب د ولو منځ دی." انسان باید خپل عیب پیدا کړي. له منځه یې یوسي. د نورو عیبونه دې نه لټوي.

په ورځنیو چارو کې دې عدالت وکړي. ښو ته دې ښه او بدو ته دې بد ووایي. هیڅکله دې په حق خاورې نه اړوي. د تمې، ملګرتیا او یا خپلوۍ لپاره دې باطل ته حق او حق ته باطل نه وایي. خدایﷻ انسانان معزز پیدا کړي دي. ملایکو د خدایﷻ په امر آدم علیه السلام ته سجده کړې. له دې امله د انسان مقام او منزلت تر ملایکو لوړ دی. انسان باید دا لوړ دریځ او مقام وساتي. په ځان کې دې انساني خوی پیدا کړي او پر سمه لار دې روان شي.

په تیارو او باطلو لارو دې نه ځي. په شتمنۍ او بېوزلۍ دواړو دې شکر وباسي. داسې ونه کړي، چې د سوکالۍ او کرارۍ پر مهال یې خپل خالق هېر وي. خو که تنګسه او زحمت ورباندې راشي، نارې سورې پیل کړي. په هر حالت کې یې باید خدایﷻ په یاد وي. په ځوانۍ او روغوالي کې دې خپل خدایﷻ نه هېروي او تل دې د هغه عبادت وکړي. هغه عبادت او خدمت چې د ځوانۍ پرمهال کیږي، د زوړوالي او ناروغۍ په وخت کې نه کیږي. که څوک درته نیکه او سمه لاره درښیي، نو مننه ترې وکړه، ځکه هرڅوک چاته ښه او سمه لاره نه ښیي.





## فعالیتونه

۱ـ درې تنه زده کوونکي دې پورته نظم په ښه غږ د ټولګي په وړاندې ووايي.

۲ـ د پورته نظم مفهوم څه شی دی؟ درې تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه پرې خبرې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې په دریو ډلو وویشل شي. هره ډله دې د پورته نظم اووه، اووه بیتونه په ساده ژبه ولیکي. د هرې ډلې استازی دې خپله لیکنه نورو ته ولولي.

٤ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي په وړاندې د ښو اخلاقو په اړه د مخکنیو لوستونو د مرکو په څېر مرکه وکړي.

٥ـ په لوست کې لاندې راغلې کلمې معنا او په جملو کې یې راوړئ:

تنکی، تنکي ځوانان، څنګ، اړتیا، سمبال، چمتووالی، څومره، ارزښت، ولې، غر، مچ، وزر، تله، ټټو، ملګ، وېښته، کوږ،مرور، زېرمه، باور.

٦ـ دوه تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي په وړاندې ووايي چې د نورو خلکو د عیبونو لټول ښه کار دی او که بد؟ په دې اړه دې خبرې وکړي.



## کورنی دنده

زده کوونکي دې د پورته نظم مفهوم په خپله ژبه ولیکي او په بله ورځ دې هغه د نورو په وړاندې ووایي.





# لنډۍ

- آیا تاسو لنډۍ پېژنئ؟

په مخکینیو ټولګیو کې مو د نظم بېلا بېل ډولونه پېژندلي دي. دلته د پښتو د ادب یو بل ډول لولو چې لنډۍ نومېږي. لنډۍ د پښتو د ولسي ادب غوره برخه ده. لنډۍ په بله ژبه او ادب کې نشته. لمن یې ډېره پراخه ده. هر راز مطلب پکې ادا کېدای شي.

- آیا تاسو کله لنډۍ اورېدلي دي؟
- تاسو کوم ډول لنډۍ پېژنئ؟

لنډۍ پښتو شعر دی. لنډۍ د ولسي ادب یوه برخه ده. لنډۍ د ټپې، مسرۍ او ټیکۍ په نومونو هم یادیږي. لنډۍ د پښتنو په هره سیمه، هر کلي او کور کې په خاصو غږونو او ټاکلي ډول ویل کیږي. په لنډیو کې د خلکو د ژوند او فکر هره خوا یاده شوې ده. مینه، ښکلا، وصال، بېلتون، خوشحالي، غم، عدالت، هېوادپالنه او داسې نور موضوعات په لنډیو کې ځای شوي دي. تر اوسه په زرګونه لنډۍ راټولې شوي دي، خو نورې ډېرې لنډۍ شته چې لا تر اوسه راټولې شوې نه دي. لنډۍ دوه مسرۍ لري. لومړۍ مسرۍ یې لنډه او نهه سېلابه او دویمه یې اوږده او دیارلس سېلابه وي.

| څپه | ۱ | ۲ | ۳ | ٤ | ٥ | ٦ | ۷ | ۸ | ۹ | ۱۰ | ۱۱ | ۱۲ | ۱۳ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لومړۍ مسره | که | په | می | وند | کې | ش | هید | نه | شوې | | | | |
| د و یمه مسره | خدای | ږو | لا | له | یه | بې | نن | ګۍ | ته | دې | سا | تي | نه |

**دلته د لنډیو یو څو بېلګې وګورئ:**

که په میوند کې شهید نه شوې
خدایږو لالیه بې ننګۍ ته دې ساتینه

خال به د یار له وینو کښیږدم
چې شینکي باغ کې ګل ګلاب وشرموینه

اختر په ټوکو ټوکو راغی
نه مې اوږۍ شته نه د غاړې تاویزونه

له لوړو غرونو پنا یاره
سپینې سپوږمۍ ته سلام کړه سلام به کړمه

ګریوان مې ټول په اوښکو لوند دی
ما د جانان له غمه ډېر ژړلي دینه

په ناموس ننګ په وطن جنګ دی
د وطن جنګ ته په غورځنګ ورځه مینه

د متن لنډیز:

لنډۍ په پښتني سیمو کې ډېرې مشهورې دي. لنډۍ دوه مسرۍ لري. لمن یې ډېره پراخه ده. ډېر لوی مطلب پکې ځاییږي. په لنډیو کې ملي احساسات ډېر قوي دي. په وطن باندې د دښمن د تعرض پر مهال ځوانان له هېواد څخه د دفاع لپاره پکې هڅول کیږي. وګورئ دا لنډۍ:

ته په سنګر کې ځان شهید کړه
زه به ټیکری ستا په زیارت و غوړومه

سربېره پر دې د مینې، وصال، بېلتون، خوشحالۍ او غم پر مهال هم د خلکو له خولو راوځي. په پښتني ولسي ادب کې ډېرې لنډۍ شته چې شمېر یې څرګند نه دی.



## فعالیتونه

۱ـ پنځه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او هر یو دې په خپل وار دوه، دوه لنډۍ ووايي.

۲ـ دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي. لومړی زده کوونکی دې په پورته لوست کې د لیکل شوو لنډیو یوه، یوه بېلګه ووايي او دویم زده کوونکی دې هغه معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې پر دریو ډلو وویشل شي. د لومړۍ ډلې هر یو تن دې د دویمې ډلې له هر یو تن څخه د متن د لاندېنیو نوو کلمو معنا وپوښتي. د دویمې ډلې غړي دې معنا او د درېیمې ډلې غړي دې په وار هغه په جملو کې راوړي:

لمن، پراخه، سیمه، کلی، کور، مینه، ښکلا، وصال، بېلتون، خوشحالي، مسره، سېلاب (خپه)، بېلګه، خدایرو، شینکی، ټوکې، اوربۍ، لوړ، غر، سپوږمۍ، اوښکې، لوند، غورځنګ، سنګر، ټیکری، غوړول، خوله، شمبر، څرګند.

٤ـ زده کوونکي دې پر پنځو ډلو وویشل شي. هره ډله دې په متن کې د (ی) ګانو ډولونه پیدا او ولیکي او نورو ټولګیوالو ته دې هغه په وار ولولي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د خپل کور له خلکو او ګاونډیانو څخه لږترلږه پنځه لنډۍ زده، په کتابچو کې دې ولیکي او سبا دې هغه په ټولګي کې ووايي.



شپږویشتم لوست

# روزنیزه کیسه

■ یووالی څه ته وایي؟

اتفاق او یووالی په ژوند کې د بریالیتوب او کامیابۍ نښه ده. د یووالي په برکت ډېر کارونه سرته رسېږي. یووالی د انسان د سعادت او نېکمرغۍ ضامن دی. د یووالي له لارې سرې په ستونزو او مشکلاتو بریالی کیږي. په دې لوست کې د یووالي په اړه یوه روزنیزه کیسه غوره شوې. هیله ده د زده کوونکو لپاره به په زړه پورې وي.

■ یووالی کومې ګټې لري؟

# يووالى او اتفاق

يو زوړ سړی و. د ځنکدن حالت ته رسيدلی و. غوښتل يې خپلو زامنو ته د يووالي لوست ورکړي. څو لښتې يې سره وتړلې، بيا يې خپل زامن راوغوښتل. زامنو ته يې ورکړې او ويې ويل چې د لښتو ګېډۍ وار په وار ماته کړئ. هر يو زوی يې د لښتو په ګېډۍ زور وواهه، خو يو هم ماته نه کړای شوه. خپله بې وسي يې ومنله. وروسته بوډا د لښتو ګېډۍ راواخيسته او په خپلو کمزورو لاسونو يې يوه يوه ماته کړه.

سپين ږيري خپلو زامنو ته مخ ورواړاوه او ويې ويل: ((ګرانو زامنو، که تاسو په خپل منځ کې په دښمنۍ او بې اتفاقۍ اخته وئ، نو زما په شان يو کمزوری سړی به هم په تاسو غالب او بريالی وي. له بې اتفاقۍ څخه به مو بده ګټه واخلي او يو په يو به مو ماتوي، خو که په خپل منځ کې مينه، دوستي، اتفاق، يووالی او ورورولي ولرئ، نو هېڅوک به په تاسو نه کاميابيږي او تل به خوښ او خوشحاله اوسئ.))

**د متن لنډيز:**

د يووالي خوند خوږ دی. ګټه يې خوره ده. يووالی د ژوند د نېکمرغی ضامن دی. د يووالي په برکت څوک نه خواريږي. که ولسونه يو تر بل يووالی او وحدت ولري، نو پرمختګ به يې په برخه وي. د بې اتفاقۍ نتيجه خرابه ده. سړی خواريږي او له بدمرغيو سره مخامخ کيږي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.

- زاړه سړي څه وکړل؟
- زاړه سړي ولې د لښتو ګېډۍ جوړه کړې وه؟
- د بوډا زامنو ولې د لښتو ګېډۍ ماته نه کړای شوه؟
- د پورته کېسې پيغام څه شی دی؟
- ستاسو په فکر يوازې والی ښه دی که يووالی؟
- د يووالي ښېګڼې بيان کړئ.
- يووالی څنګه رامنځته کېږي؟
- يووالی په څه شي ساتل کېږي؟

۲ـ څلور تنه زده کوونکي دې په وار د ټولګي مخې ته راشي او د يووالي د ګټو په اړه دې يوه، يوه دقيقه خبرې وکړي.

۳ـ درې دوه کسيزې ډلې دې د ټولګي مخې ته راشي او په وار دې دوه، دوه تنه له يو بل سره مرکه وکړي. بېلګه وګورئ:

- يو زده کوونکی: ستړې مه شې، ګلابه!
- بل زده کوونکی: خير يوسې توابه.
- لومړی زده کوونکی: څنګه ناوخته راغلې، ګلابه؟

- بل زده کوونکی: د کلي مشر خلك غونډ کړي وو او د يووالي په اړه يې ورته خبرې کولې.
- يو زده کوونکی: څه يې ويل ګلابه؟
- بل زده کوونکی: د يووالي په ګټو يې پوهول... .

٤ــ د متن لاندې نوې کلمې معنا او په جملو کې يې وکاروئ:

يووالی، ژوند، سرته رسيدل، نېکمرغي، ستونزې، بريالی، روزنيز، هيله، په زړه پورې، ځنکدن، ترل، ګېډۍ، ماته، بې وسه، منل، اخته، خوند، خوږ، پرمختګ، بدمرغي، مخامخ.

٥ــ زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي. لومړۍ ډله دې په پورته متن کې خاص نومونه او ساده صفتونه او دويمه ډله دې عام نومونه او مرکب صفتونه پيدا او ودې ليکي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کور کې د يووالي د ګټو او د بې اتفاقۍ د زيانونو په اړه پنځه کرښې مقاله وليکي.

فرانسس بيکن وايي: برياليتوب د هغه چا حق دی چې له خپلو ماتو څخه يې عبرت اخيستی وي.



اوويشتم لوست

# اخترونه

- اختر څه ته وايي؟

کوچنيان اختر ته خوشحالي کوي. اخترونه په کال کې دوه ځلې راځي. اخترونه د مسلمانانو د خوشحالۍ ورځې دي. دا ورځې بايد سمې ولمانځو.

- خلك په اختر کې څه کوي؟
- په کوم اختر کې مسلمانان قرباني کوي؟

د نړۍ هر ولس ځانته د خوشحالۍ ورځې لري. موږ مسلمانان په نورو خوښيو سربېره اخترونه لرو. اخترونه زموږ مذهبي ورځې دي. اخترونه په کال کې دوه ځلې راځي. يو ته يې کوچنی اختر او بل ته يې لوی اختر وايي. کوچنی اختر د روژې مبارکې مياشتې له پای وروسته پيلېږي. درې ورځې دوام کوي، خو په کلو او بانډو کې خلک څلور او آن پنځه ورځې اختر کوي. د روژې په مياشت کې او يا هم د کوچني اختر په ورځو کې خلک د فطر صدقه ورکوي. غوره داده چې دا صدقه د اختر له رارسېدو څخه دمخه بېوزلو خپلوانو، ګاونډيانو او يا نورو کورنيو ته ورکړ شي. لوی اختر د قمري کال د وروستۍ مياشتې (ذوالحجة) په لسمه ورځ پيل کېږي. ددې مياشتې نهمه ورځ عرفه وي. په دې اختر کې بډای مسلمانان د حج د فريضې د اداکولو لپاره مکې مکرمې ته سفر کوي. همدا رنګه هغه مسلمانان چې وس لري قرباني کوي.

د قربانۍ لپاره څاروي حلالوي. د قربانۍ د غوښې يوه برخه مسکينو او بېوزلو کورنيو ته ورکول کېږي. په اخترونو کې خلک يو بل ته مبارکي ورکوي. د خپلو خپلوانو کورونو ته ځي. د اختر د لمانځلو دود او دستور له يو ځای څخه بل ځای ته توپير لري. تاسو په اخترونو کې څه کوئ؟

**د متن لنډيز:**

موږ دوه اخترونه لرو. يو ته يې کوچنی او بل ته يې لوی اختر وايي. اخترونه د مسلمانانو د خوشحالۍ ورځې دي. د اختر په ورځوکې خلک يو بل ته مبارکي ورکوي. مرور پخلا کېږي. خلک ښه خواړه پخوي. نجونې او ماشومان د اختر په شپه پښې او لاسونه سره کوي او نکريزې ږدي. پېغلې او ځوانان مېلو ته ځي. د هر ځای خلک اخترونه د خپل ځای له دودونو سره سم په ډېر ښه ډول لمانځي. زموږ اخترونه دې تل بختور اونېکمرغه وي!



## فعاليتونه

۱ـ څلور تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او د اخترونو په اړه دې دوې، دوې دقيقې خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. هره ډله دې په خپلو منځونو کې يو بل ته د کوچني او بيا د لوی اختر مبارکي ورکړي.

زده کوونکي دې په دوه کسيزو ډلو کې لاندې مرکې تمثيل کړي:

## لومړۍ مرکه

ښاپېرۍ: سلام ګلالۍ، اختر دې مبارک شه!

ګلالۍ: ستا دې مبارک شي، ښاپېرۍ. لمونځ او روژه دې قبوله شه.

ښاپېرۍ: خیر یوسې ګلالۍ. جامې دې مبارکې، څه ښکلې جامې دې کړې.

ښاپېرۍ: مننه. دا جامې مې راته ماما له پېښوره راوړې دي.

ګلالۍ: ډېرې ښکلې دي. ښایسته پرې ښکارې.

ښاپېرۍ: نکریزې دې هم ایښي. لاسونه دې ښه سره شوي دي. نکریزې دې له کومه کړې وې؟

ګلالۍ: نکریزې مې هم راته ماما له جلال آباد څخه راوړې دي. لږې پاتې دي. راسره لاړه شه. تاته به یې درکړم.

ښاپېرۍ: مننه، ګلالۍ. درسره ځم.

## دویمه مرکه:

بریا: اختر دې بختور شه، اسرې.

اسره: ستا دې بختور وي، خورې. ستړې مه شې. چېرې تللې وې؟

بریا: زرغونې کره تللې وم. اختر مبارکي مې ورکړه.

اسره: ښه دې وکړل. راځه بریا چې تاسو کره لاړ شو. مور اوپلار ته دې د اختر مبارکۍ لپاره راغلې یم.

بریا: ښه ده، ځه چې ځو.

بریا: مورې! وګوره، اسره راغله.

مور: اسرې، ستړې مه شې، اختر دې مبارک شه.

اسره: ستا دې مبارک وي، ترورې. طاعت او عبادت دې قبول. لاسونه دې راکړه چې ښکل یې کړم.

مور: لویه شې، اسرې، خدایﷻ دې عمر درکړي. راځه چای وڅښه، د اختر مېوه وخوره.

اسره: ښه ده ترور، مخکې شه.

اسره: څه ښه ممیز دي! ښه خوندور دي.

بریا: هو، د غزني ممیز دي. وخوره، اختر دی. زیان نه لري.

اسره: دلته ډېر شیان دي. کوم یو څوک ژر وخوري. هر چېرته چې لږ لږ وخورې، مړېږې.

بریا: دارو دې شه.

## درېمه مرکه:

داود: اختر دې بختور شه، خلیله. داخل د حاجیانو، غازیانو!

خلیل: ستا دې مبارك وي. طاعت او عبادت دې قبول شه.

داود: څه چې څو کورته. چاى او د اختر مېوه وخورو، خلیله.

خلیل: مننه، داوده. بل وخت به راشم. اوس ځم چې قرباني کوو.

داود: څه شی مو اخیستی، خلیله؟

خلیل: پسه مو اخیستی. تاسو قرباني نه کوئ؟

داود: ولې نه خلیله. موږ په غوايي کې شریک شوي یو.

خلیل: څو تنه شریک شوي یاست؟

داود: څلور تنه. پلار مې، مور مې، تره مې او مشر ورور مې.

خلیل: ښه ده، داوده. خدای ﷻ دې قبوله کړي. زه درنه لاړم.

داود: په مخه دې ښه خلیله، هېر دې نه شي چې بیا راشې.

خلیل: ښه ده، بېګا ته راځم، د اختر مېوه به هم وخورو او کیسې به هم وکړو.

داود: د خدای ﷻ په امان!

خلیل: د خدای ﷻ ښه دي، داوده!

٤ـ زده کوونکي دې لاندې نوې کلمې معنا او په جملو کې دې وکاروي:

اختر، کوچنی، ځلې، لمانځل، ولس، ځانته، سربېره، روژه، پیل، کلی، بانده، غوره، بېوزلي، ګاونډی، بډای، پسه، څاروي، غوښه، دود، توپیر، مرور، پخلا، خواږه، پښه، لاس، سره، نکریزې، ږدي، پېغلې، لمانځل، بختور، نېکمرغه.

# ملګري ته لیک

۱۳۸۹/۸/۱٤

ګرانه وروره زمری جانه،

خدای ﷻ دې روغ لره.

زه ښه یم. آزموینه مو سرته ورسېده. نتیجه یې هم راکړه. اتم ټولګي ته بریالی شوم. په پښتو کې مې لوړې نومرې وړې دي. پوره سل یې راکړي. ښوونکي صاحب ښه درس راکړی او اوس پښتو لوستلای او لیکلای شو. خبرې پرې هم کولای شو. په نورو مضمونونو کې مې نومرې هم ښې دي. اتیا او نوي نومرې مې وړې دي. سږکال درسونه ډېر ښه وو.

څو ورځې وروسته درې میاشتې رخصتي لرو. هر څوک کورونو ته ځي. زه هم راځم. له نژدې به سره وګورو. ډېر درېسې خپه شوی یم. پخوانۍ شپې، ورځې مې یادیږي. د کیسو یو کتاب مې درته اخیستی. له ځان سره یې دروړم. ډېر به دې خوښ شي. ښې خوندورې کیسې لري.

که دلته دې څه شی په کار وي، راته ووایه. پیسې لرم. درته به یې دروړم. احمد او صمیم ته مې سلامونه ووایه.

په خدای ﷻ دې سپارم.

ورور دې، ګل احمد



کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې د مشرانو په مرسته د کوچني او لوی اختر په اړه پنځه، پنځه کرښې ولیکي او بله ورځ دې ټولګي ته راوړي.





# د کال وروستی لوست




■ ستاسو تعلیمي کال کله پای ته رسېږي؟

څو ورځې وروسته ستاسو تعلیمي کال پای ته رسېږي. تاسو په دې کال کې ډېر نوي شیان زده کړل. اوس کولای شئ په پښتو ژبه لوېږي، لوېږي خبرې وکړئ. که همداسې دوام ورکړئ، په پای کې به د خپلې مورنی ژبې تر څنګ پښتو ژبه هم زده کړئ.

■ له مورنی ژبې پرته د بلې ژبې زده کړه څه ګټه لري؟

نن تاسو د اووم ټولګي د پښتو ژبې وروستی لوست لولئ. فکر وکړئ، کله چې نهه میاشتې دمخه تاسو اووم ټولګي ته نوي راغلئ، په پښتوژبه مو سمې خبرې نه شوې کولای. اوس وګورئ څومره پښتو مو زده کړې. اوس په ډېروخبرو پوهېږئ؛ ډېرې خبرې کولای شئ؛ نورو ته خپل ځان پېژندلای شئ، د یو شمېر ټاکلو موضوعګانو په اړه خبرې کولای شئ؛ ډاکټر ته خپله ناروغي ویلای شئ؛ له درملتون څخه درمل اخیستلای شئ. تر زیاتې اندازې پورې په پښتو ژبې کې خپلې ورځنۍ ستونزې حلولای شئ. دا ټول ستاسو د یو کال د زیار او زحمت نتیجه ده. په هر مضمون کې مو همداسې نوي شیان زده کړي دي. فکر وکړئ، که شپږ کاله په ښوونځي کې او همداسې په پوهنتون کې هر کال نوي شیان زده کړئ، نو په پای کې به مو څومره نوي شیان زده کړي وي.

**د متن لنډیز:**

د کتاب وروستی لوست د تعلیمي کال د پای معنا لري. که د تعلیمي کال پای د هغې له پیل سره پرتله (مقایسه) شي، نو سړی پوهیږي چې څومره نوي شیان یې زده کړي دي. همدا زده کړې د پوهې د لاسته راوړلو لپاره لاره هواروي. هر څومره چې په ځیر او دقت زده کړه وشي، هغومره یې نتیجه ښه وي او سړی یې مېوه خوړلای شي.

## فعالیتونه

۱ـ هر زده کوونکی دې په خپل وار د ټولګي مخې ته راشي او د زوړکال د زده کړو په اړه دې خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په دوه کسیزو ډلو کې د ټولګي په وړاندې مرکې وکړي. هڅه دې وشي چې ټول زده کوونکي پکې برخه واخلي.

۳ـ زده کوونکي دې یوله بل څخه د وخت پوښتنه وکړي. دا لاندې وختونه دې پکې وکاروي:

څو بجې دي؟



یوه بجه ده. دولس بجې دي. شپږ بجې دي. لس بجې دي. پاو کم یوه بجه ده. پاو کم دولس بجې دي. پاو باندې دوه بجې دي. پاو باندې درې بجې دي. له یوې څخه پنځلس دقیقې تېرې دي. اتو (بجو) ته دیارلس (دقیقې) پاتې دي… .

# پلار ته لیک

۱۳۸۹/۸/۲۰

گرانه او مهربانه پلاره، السلام علیکم،

له خدای ﷻ غواړم چې ټوله کورنۍ مو روغه، جوړه او خوښه اوسي. زه هم ستاسو د دعاګانو په برکت ښه یم.

ګرانه پلاره،

ډېر مې یادیږئ. مورجانه مې ډېره یادیږي. په هوسۍ او کوچني ایمل جان پسې ډېر خپه شوی یم. خدایﷻ دې وکړي چې ټول ښه وي.

مهربانه پلاره،

زموږ درسونه پای ته رسېدلي دي. بله ورځ مو کلنۍ آزموینه پیل کېږي. لس ورځې به روانه وي. د آزموینې له پای ته رسېدو درې ورځې وروسته نتیجې راکوي. بیا له خیره که خدایﷻ کول کور ته درځم.

سږکال مو لوستونه ډېر ښه وو. ښوونکو ښه درس راکړی او موږ ډېر ښه زده کړي دي. ټول لوستونه مو په خپله ورځ یادول. ښه خبره خو داده چې پښتو مو ډېره ښه یاده کړې. اوس پښتو لیک په آسانۍ لولو. لیکل هم پرې کولای شو. د راډیو او تلویزیون په پښتو پروګرامونو پوهېږو. هره شپه پښتو خبرونه اورم. له خپلو ټولګیوالو سره په پښتو خبرې کوم. که په کوم ټکي پوه نه شو له یو بل او یا ښوونکي صاحب څخه یې پوښتنه کوو. ډېر مهربان او زړه سواند ښوونکی لرو.

مورجانې ته مې سوغات اخیستی. ګرانې هوسۍ جانې او ایمل جان ته مې ډېرې ښکلې څپلۍ اخیستي دي. له ځانه سره به یې دروړم. پلار جانه دعا راته کوه چې آزموینه مې په خیر تېره شي.

مورجانې ته مې سلام وایه او ګران ایمل جان او هوسۍ جانه پر مخ ښکل کړه.

په لوی او مهربان خدای دې سپارم.

ستاسې زوی، تواب



## کورنۍ دنده

هر زده کوونکی دې په خپله ژبه په ساده ډول د تېر کال په اړه خپلې تجربې ولیکي او په بله ورځ دې هرو، مرو په ټولګي کې د نورو ترمخه ووایي. د زده کوونکو د لیک وړتیا د همدې لیکنې له مخې ټاکل کیږي.

الله مو مل شه!

بریالي اوسئ.

# وييپانگه

((الف))

اتل، اتلان: قهرمان، قهرمانان
اتیا: ۸۰
اچول: انداختن
اختر: عید
اخته: مبتلا
اخلاق: مجموعه اصول و ارزشهای عموماً پذیرفته شده که درستی و یا نادرستی و خوبی یا بدی رفتار و شخصیت افراد یک جامعه را مشخص میسازد.
اخیستل: گرفتن
ادې: مادر
ارزي: میارزد
ارزښت: ارزش
ارواښاد: شاد روان
آزموینه: امتحان
آستازی: نماینده
استول: فرستادن
استوګنه: سکونت
اسره: امید، ارزو
افاده: بیان مطلب
امله: سبب
اند: فکر
اندېښنه: تشویش
انګر: حویلی
انځر: انجیر
انځور: رسم
انډیوالان: دوستان
اوبه: اب
اودس ماتی: قضای حاجت
اوربشې: جو
اورېدل: شنیدن
اورېدل: باریدن، بارش
اوسپنه: آهن
اوسیدل: بودن، میباشید
اووم: هفتم
اونی: هفته
اوړی: تابستان
اوږده: دراز،طولانی
اوږدو خبرو اترو: بحث طولانی
اوږدوالي: درازی، طول
اوږی: گردن بند
اوښکې، اوښکو: اشک
اړ: محتاج
اړتیا: احتیاج
اړخ: پهلو، طرف
اړه: تعلق
اړوند: مربوط
اېره (ې):خاکستر

((ب))

باندې: بر سر
بانډه: قریه
باور: اعتماد
بختور: نیکبخت، مسعود
بدمرغه: بد قسمت، بدبخت
برخه: قسمت
برم: عظمت
بری: کامیابی
بریا: دست آورد
بریالي اوسئ، موفق باشید
بریالی: موفق
بریالیتوب: موفقیت
برید: حمله، حد، اندازه
بشپړ (بشپړې): مکمل
بلېږي (بلېدل): میافروزد
بنسټ: تهداب
بهر: بیرون
بهیر: روند، جریان
بوخت: مشغول، مصروف
بډای: پولدار
ښبل: بخشیدن
ښنه: بخشش
بڼه (بڼې): صورت، نوع،چهره
بې برخې: بي بهره

بې وسه: ناتوان
بېشمېره: بیشمار
بېلتون: جدایی
بېلگه: نمونه، مثال
بېوزلی: فقیر، بیچاره
بیروبار: ازدحام

((پ))

پالل (پالنه): پرورانیدن
پام: توجه، هوش
پای: اخر، پایان
پاڅیږئ: برخیزید
پاڼې: صفحات
پت: عزت، حیثیت
پخلا: آشتی
پخلی: پخت ویز
پخوا: قبلاً، پیش
پخوانی: سابقه، دیرینه
پراختیا: انکشاف
پراخه: وسیع
پرانیستل: افتتاح، کشودن
پرانیستي: کشوده
پرتله: مقایسه
پرته: بدون
پرتې: مانده
پردي: بیگانه
پردېس: مسافر
پرمخ وړل: پیش بردن
پرمختگ: پیشرفت
پروت: مانده
پرون: دیروز
پرېکړه: فیصله
پرېمنځل: شستن
پسرلي: بهار
پسه: گوسفند
پل: ،نقش پا، قدم
پلار: پدر
پلازمېنه: پایتخت
پلي: پیاده
پنا: پنا
پنځلس: پانزده
پنځه دېرش: سی و پنج
پنځه شپېته: شصت وپنج
پنځه: پنج
په خیر اوسې: به خیر باشید
په زړه پورې: دلچسث
په غاړه: به گردن، در مسوولیت
په مخه دې ښه: پیشرویت خوبی
مخه ښه: خدا حافظی
په وړاندې: در برابر
په گوته کول: انگشتنما کردن
پوخ: پخته
پورته: بالا
پوره: مکمل
پوزې (پزه)، بینی
پوه (دانایی): دانا
پوټې: (ریزه گی)، توته
پوځي: نظامی، عسکری
پوړی: طبقه
پوښتنه: پرسان، سوال
پیاوړتیا (پیاوړی): قوت (قوی)
پیغام: پیام
پیل کېږي (پیل): آغاز میشود
پیوستون: همبستگی
پټ: پټول: پټیږي: پنهان، پنهان نمودن، پنهان میشود
پړونی: چادر
پښه، پښې: پا، پاها
پښېمان: پشیمان، نادم
پېچلې، پیچلی: مغلق
پېروی: تعقیب
پېژندل: شناختن
پېژندگلوي: معرفت، شناسایی
پېغله (پېغلې): دختر جوان
پېښه: واقعه

((ت))

تاسو: شما
تاویزونه: تومار، تعوید
تر پښو لاندې کول: زیر پا کردن

تر لاسه کول : بدست اوردن
ترخه: تلخ
ترمنځه: دربین
تره: کاکا
ترور: خاله، عمه
تروه: ترش
ترخ: عین حال
ترې: ازش
تش: خالی
تکړه:لایق
تګلار (پالیسي): طرزالعمل
تل: بیخ، ته
تل: همیشه،
تلپاتي: دایمی، ماندګار
تللې: رفته
تله: ترازو
تله: (ننګ): می رفت، رفتن
تمه: امید، طمع
تن: وجود
تنکي ځوانان: نیمه جوانان
تنکی: نلغه
توپیر: فرق
تور: سیاه
تورپیکی: نام زنانه است
تورتم: تاریکی
توره دړه: تخته سیاه
توره تږخله: سیاه سرفه
توره: سیاه (مونث)
توره، توري: شمشیر
توریالی: شمشیرزن، بهادر
توریالی: نام مردانه
توکی: ماده
توګه: نوع، طرز
تومنه: مایه
تویول: ریختاندن
تیاره: تاریک
تیږه: سنګ
تړل: بستن

تښتول: ګریختاندن
تښتیدل: ګریختن
تېر (تېره): ګذشته

((ث))

ثانوي ښوونځی: مکتب ثانوي، لیسه

((ج))

جامې: لباس
جلا: جدا
جومات: مسجد
جوړښت: ترکیب، ساختمان
جګړه: جنګ

((چ))

چاپېریال: محیط
چمتو، چمتووالی: آماده، آماده ګی
چټل: کثیف، ناپاک
چنې: نخود
چیرې: کجا

((څ))

څارنه: تر سترګو لاندې ساتل (مراقبت)
څاروي: ځلوربولي، حیوانات
څړځای: د څارویو د پوولو شین او له وښو ډک ځای
څپه: سیلاب

((ح))

حرا: کوهی در عربستان
حکمت: معرفت به مسائل زنده ګی و اینکه چګونه باید زنده ګی کرد.

((خ))

خاوره، خاورې: خاک
خاورو ته سپارل: به خاک سپردن
خاوند: صاحب
خبرې اترې: ګفتګو
خپل منځ: در بین خود
خپلواک: مستقل
خپلوي: خویشاوندی
خپه: خفه
ختن: نام جای در چین، اهوان و عطر مشک حاصله از انها شهرت دارد.

خدای ببنلی: خدا بیامرز
خدای په امان: خداحافظ
خدای مو مل شه!: خداوند یار و یاور شما
خدایږو: به خدا، قسم است
خرڅیږي: فروخته میشود
خلقت: پیدا کېدل
خوار مه شي، خواره مه شي: ذلیل نشوی
خواړه: خوردنی، غذا
خواږه: شیرینی
خور: خوري: خورئ: خورې: خوردن،
خوشالي: خورسندی
خوله: دهن
خولی:کلا
خوند: مزه،لذت
خوندور: خوندورې: لذیذ
خویندي: خواهران
خوړل: خوردن
خوږ: خوږه: شیرین
خوږیدل: شیرین شدن
خوږي: شیرین
خوښ:خوښي:خوښیږي: خوښی: خوشحال
خیژي (ختل): برامدن
خټکي: خربوزه
خټګر: معمار
خټې:گِل
((د))
د بل تر لاس لاندې ژوند: زنده گی زیر دست دیگران
د خدای ښه دي: فضل خداوند
د کاڼي کرښې: نقش سنگ، سخن والا
درباندې: بالآیت
درسره: با تو
درلودل: داشتن
درمل: دارو، دوا، ادویه
درملتون: دواخانه
درناوی : احترام
درنه (درڅخه): از تو
درنه سترګه: به چشم عزت، به احترام
درنښت: سنگینی، احترام
درواغ: دروغ، حرف نادرست
دریځ: موقف
درې کسیز: سه نفری
دریم: سوم
دمخه: پیش از. قبل از
دمه: توقف، تفریح، استراحت
دنده: وظیفه
دننه: داخل
مینځي: میشوید
دوبي: کالا شوی
دود: رواج
دودونه: رواجها
دوی (هغوی): اینها (انها)
دوړې: گرد
دیارلس: سیزده
((ذ))
ذایقه: خوند
((ر))
رابلې: ، میطلبد، دعوت میکند
راز راز: نوع، نوع، قسم، قسم
راستون: بازگشت
راسره: همراهم
راغی: امد
راوستل: اوردن
راولي: می اورد
رب: پرورنده، خداوند (ج)
رحیم: رحم والا
رغون: ابادی
رنځور: ناجور، مریض
روزل: روزنیز: روزي: پرورش کردن، پرورش، میپرورواند
روژه: رمضان
روغ اوسې: صحتمند باشید
روغ: جور، صحت
روغبړ: احوال پرسی
روغتون: شفاخانه
روغتیا: صحت

ريبل: درو کردن
رښتينولي: راستکاری، صداقت
رڼا: روشنی

((ز))

زامن (زوی): پسران (پسر)
زاړه: کهنه
زده کړه: آموزش
زرغونه: سرسبز (نام زنانه است)
زرلښته: چوبطلایی (نام زنانه است)
زرمینه: نام زنانه است
زرین: طلایی، نام مردان
زلمی: جوان، نام مردانه
زوړ: کهنه
زیاتره: اکثرا، بیشتر
زیار: زحمت
زیږیدل: تولد
زړه سوی: دلسوزی، ترحم
زړه: دل، قلب
زړور: دلاور
زړګی: قلب (اسم تصغیر)
زیرمه: پس انداز
زیږیدلی: تولد یافته

((ژ))

ژبه: زبان
ژر ژر: زود، زود
ژړلي: گریسته
ژمی: زمستان
ژوبله: زخم
ژوند: ژوندون: زنده گی
ژیړ: زرد
ژیړی: زردي، یرقان

((س))

سابه: سبزی
ساري: مانند
ساړه: خنک
سپوږمی:مهتاب
سپین ږیری: ریش سفید
سپیني: سفید

ستاسو: ازشما
ستاينه: صفت
ستایلی: ستایش
ستر: بزرگ
سترګي: چشمان
ستومان: خسته
ستونزه: ستونزي له منځه وړل: مشکل، مشکلات را از بین بردن
ستونی: گلو
ستړی:ستړی مه شي:
سربېره: برعلاوه
سرته رسیدل: به سر رسیدن، انجام یافتن
سرغړونه: تخلف
سره زر: زر سرخ، طلا
سره میاشت: هلال احمر
سره: سرخ
سلا: مشوره
سمبال: بسیج
سمدلاسه: فورا، دفعتا
سمندر: بحر
سمه: درست، ابادی
سهار: صبح
سوتره: پاک
سودمن: مفید
سور (سره): سرخ
سوکالي: آرامی
سوکړک: نان جواری
سوله: صلح، آرامی
سوځول: سوختاندن
سوځي: میسوزد
سیمه: سیمې: منطقه، مناطق
سیند: دریا
سینگار: ارایش
سړی: سړي: مرد، مردان
سږکال: امسال
سږی: شش

((ش))

شاوخوا: دور و بر

شپاړس: شانزده
شپاړسم: شانزدهم
شپه: شب
شتمني: دارایي
شته: مال او دارایي
شته: هست
شکېدلي (پنه): پاره (پیزار)
شلېدل: پاره شدن
شمار: حساب
شمله: سر لونگی بالای کلاه
شمېر: عدد
شیدې: شیر
شری: سرخکان
شین: شین زړه: سبز (دل بیزار)
شینکی: سبز
شړل: راندن
شېبه: لحظه

((ط))

طراوت: تازه گی

((غ))

غاټول: لاله
غر: کوه
غله: غلې: غله دانه، حبوبات
غندل: تقبیح کردن،
غنم: گندم
غوایې: گاو
غواړي: میخواهد
غوره: منتخب
غورځنگ: شور و شوق، تحریک
غونډ: جمع، همه، غونډ مشر
غوړول: هوار کردن، چرب کردن
غوږ: غوږ ایښوول: گوش فرا دادان
غوښتنه: خواهش
غوښه: گوشت
غونډه: جلسه
غټه: کلان، بزرگ
غټې وریجې: برنج لک

غړی: عضو
غږونه: اوازها

((ک))

کارول: استعمال نمودن
کالي: لباس
کانگې: استفراق
کاینات: همه موجودات جهان
کاڼی: سنگچل
کتنه: ملاحظه
کتنځی: معاینه خانه
کچه: سطح
کرکیله: زراعت
کرل: کاشتن
کرنیز: زراعتی
کرونده: زمین زراعتی
کرښه: خط
کشر: کهتر
ککړ: الوده
کلا: قلعه
(خوارلس) کلن: (چهارده ساله) ساله
کله کله: گاه گاه
کلونه: سالها
کلی: کلي: ده، دهات
کلي: کلید
کلیوالي: دهاتی
کوتره: کفتر
کوچ: مسکه،
کوچنی: کوچنیوالی: خورد، خوردسالی
کور: کورنی: خانه، خانواده
کولمې: روده ها
کوڅه: کوچه
کوږ: کج
کیږو (کېدل): میشویم، شدن
کڅوره: خلطه
کړاو: تکلیف، تمرین
کړه: کړو (کړه): کردن، میکنیم،
کږه: کج
کښېنئ: بنشینید

«گ»

گاونډی: همسایه
گران: محبوب
گریوان: گریبان
گومارل: تعین

«ل»

راه، طریقه
لاربښوونکی: رهنما
لاربښوونه: رهنمایی
لاس نه رسېدل: عدم دسترسی
لاس: دست
لالیه: محبوبم
لامل: علت، عامل
لانجمن: دعوه یی
لانجې: دعوه ها
لانده: تر
لاندې باندې: سر به سر
لاړ: رفت
لپاره: برای
لرګی: لرګي: چوب، هیزم
لګیا: مصروف
لمانځل: تجلیل نمودن
لمن: دامن
لنډ: کوتاه
لنډیز: خلاصه
لنډۍ: نوعی از سروده مردمی پښتو
له امله: بخاطر
له لاسه نه ورکول: از دست نه دادن
له مخې: از روی
له یوه لاسه ټک نه خیژي): از یک دست صدا نه میبراید
له: از
لوست:لوستل: لولم: درس، خواندن، میخوانم،
لومړنی ښوونځی: مکتب ابتدایه
لوند: تر
لوی: لویان: بزرګ، بزرګان
لوییږي: کلان میشود
لوړ: بلند
لوړې زده کړې: تحصیلات عالی
لوږه: ګرسنه ګی
لونې (لور – لورګانې): دختر، دختران
لیرې: دور
لیک لوست: لیکل: لیکنه: لیکنی: خواندان و نوشتن
لټه: جستجو
لټول: پالیدن
لړ: سلسله
لږ : لږوالی: لږ تر لږه: کم، کمبود، کم از کم، دست کم
لښته: چوب

«م»

ماته: ماتوي: میشکند
ماشومان:ماشومتوب: اطفال، طفلی
مالوچ: محلوج، پخته
ماڼۍ: قصر
متصف: ستوده شده
مچ: مچان (مچ): مګس
مخ اړوي: رو میګرداند
مخامخ: رو به رو
مخکیني: قبلی
مرسته: کمک
مرستیال: معاون
مرکه: مصاحبه
مرور: خفه، قهر
مریی (مرییتوب): غلام، غلامی
مرګ ژوبله: مرګ و میر
مزل: راه رفتن
مستې: ماست
مسره: مسری: مصرع
مشر: کلان
مشرانو جرګه: مجلس اعیان، سنا
مل: همراه، ضمیمه
ملک: سرزمین
ملګری: همراه، رفیق
ملي ټولنه: جمعیت ملی

ممیز: کشمش
منګول: پنجه
منګۍ: کوزه گلی
منل: منلی: قبول کردن، قبولی
مننه: تشکر، ابراز سپاس
منی: خزان
منځنی ښوونځی: مکتب متوسطه
منېه: دوش
مهال: وقت
موچي: پینه دوز
موخه: هدف
مور: مورنی: مادر، مادری
موټی: مشت
میلمستون: مهمانخانه
مین: عاشق، فریفته
مینه: عشق
مینځي: میشوید
میني : علاقه
مېړانه: مردانه گی
مړ (مړیې کړم): مرده، مراکشت
مړی: مرده
مړیږي:مړبښت: سیر میشود، سیری
منېه (ور منېه): دوش
مڼه: سیب
مېرمن: خانم
مېنه: خانه
مېره: مېړونه:

((ن))

ناپوه: نادان
ناروغ: ناروغي: مریض، مریضی
نارینه: مردانه
ناست: ناسته ولاړه: نشست و برخاست
ناغه: جریمه
ناوخته: ناوقت
ناوي: عروس
نتکی: زیزری که بر جبین اویختانده میشود
نجلی: دختر
نرمه: نرم
نری رنځ: سل، توبرکلوز
نری وریجې: برنج باریک
نژدې: نزدیک
نس ناسته: اسهال
نکریزې: خینه
نمانځنې: تجلیل میکند
نن: امروز
ننګ: غیرت، دلاوری
نني: امروزی
ننوزي: میدراید
نه ستړي کیدونکي: خسته گی ناپذیر
نهه: نو ۹
نور: دیگران
نوکان (نوک): ناخنها (ناخن)
نومول: نوموي: نامیدن، مینامد
نومیالي: نومیالیو: نامور
نومیږي: نومېدل: نامیده میشود، نامیدن
نوی: نو، جدید
نړۍ: دنیا
نښته: برخورد، جنگ
نښه: نشانی
نګولي: کتغ
نېکمرغه: نېکمرغي:نېکمرغی: خوشبخت

((هـ))

هار: امیل
هر اړخیز: همه جانبه
هرو مرو: حتما
هغومره: آنقدر
هلك: بچه، پسر
همزولی: همسال
هندوانه: تربوز
هواریږي: هوارې: هموار میشود
هوسایي: ارامی
هوسۍ: آهو
هیله: آرزو
هټۍ: دکان
هڅه: هڅول: کوشش، تشویق
هډوکي: استخوانها
هېر: فراموش
هېواد: کشور

هېوادپالنه: وطندوستی
هېوادوال: وطندار
((و))
واخله: بگیر
وار: نوبت
واک: اختیار
والوته: والوزئ: پرید، بپرید
واوره: بشنو
واوروي: بشنواند
واوره: برف
وتلی: برآمده
وچ: خشکك
وخورئ: بخورید
ودان: ودانی: آباد، آبادی
ودرېدم: ودرېږئ: استاد شدم، استاد شوید
وده: خفته، خواب برده
وربانديې: بالایش
ورته: برایش
ورغی: (به طرف او) رفت
ورک: گمشده
ورور: وروروليې: وروري: وروګلوي: برادر، برادری
وروسته: بعدا
وريجي: برنج
ورځ: روز
ورځپاڼې: روزنامه ها
ورځه: برو
وزر: بال
وزگار: بیکار
وژني (وژل): میکشد(کشتن)
وساتئ: نگه کنید
وسه: توان
وشرموینه: خجالت دهد
وصال: یکجا یی
وغوروه: هموار نمایم
ولس: ولسمشر، ولسي جرگه: مردم، ملت
ولسي: مردمی
ولمانځو: تجلیل نماییم
ولوله: هیجان
ولولي: بخواند
ولوید(لوېدل): افتاد (افتادن)
ولې: چرا
ولېدي (لیدل): دیدمت
ومومي: دریافت
ومې پېژاند (پېژندل): شناختمش
ونیسي: بگیرد
ونډه: حصه، سهم
ویاړل: مفتخر نمودن
ویاړلي: ویاړلي: ویاړي: با عزت
ویش: تقسیم
ویل: گفتن
وینا(وي): گفتار
وینه: خون
وښبنه: بنوش
وړاندې: پیش
وړتیا: مهارت، استعداد
وړیا: مفت، مجانی
وږي: گرسنه
وېشل: تقسیم نمودن
وېښته: مو
((ی))
یخي: سرد
یوازې سر: تنهایی
یووالی: اتحاد
یوور: برد

# اخځلیکونه


١- ادبپوهنه، سید محی الدین هاشمي
٢- اوسني لیکوال (لومړی ټوک) عبدالرؤف بېنوا
٣- برگزیده سخنان بزرگان، مرضیه یعقوبي
٤- پټه خزانه، محمد هوتک
٥- پښتو پښویه، پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار
٦- پښتو گرامر، پوهاند صدیق الله رښتین
٧- خواږه نعتونه، مولانا عباس قادریه
٨- د پښتو ژبې لنډ گرامر، سید محی الدین هاشمي
٩- د شمس الدین کاکړ دېوان